تربیت په نااهلانو حبطـه وي
له کمین به بې بدو څه وانه وري
پرېکول یې درد لري پرېښول یې عیب دي
سنا د خیال وسلیمان ته م خان ونیو

وریږه نه شي د دهقان په زور شنځ
همیشه له کنجي سـره رژي پځ
ناخلف دي د پدر په مخ کښې زځ
د میږي په لاس کښې هیڅ نشته بې ملځ

**معزالله** لره طناب د زلفو ورکړه
چه پرېووځي له کوهي سـنا د زنځ

د مجاز عاشقي عین حقیقت دی
ترڅرا تر ثریا که فهم وکړي
په جهان به هیڅوک نه وو که عشق نه وي
چه په مینه کښې یک دل ویک زبان وي
دا یوه وبنا د زړه په غوږو واوري
سر د دروي مال د دروي پت د نه ځي
چه یوځل زړه د چا په مینه بند کړي
چه د نیت غلطي لري بلا به ورشي
چه یې خدای ورکا وچا شکر د کاند

وهغي ته زینه اینبي د صورت دی
په خلوت کنج غوغا د محبت دی
دبدبه د عشق قایمه ترقیامت دی
ترهرچا د هغو چار په برکت دی
چه بهتره د اورنګ ترسلطنت دی
د سړي د چارو کل خوبي په پت دی
په شلول ځني کېږي د مروت دی
ترهرڅه بده بلا غلطي د نیت دی
په جهان کښې لویه بخره د همت دی

ستا د حسن لوټيو لاس په تاخت کړ — بې پروا کوزي له صلحِ له صلاحَ

هزار شکر که بندي یم ستا په زلفو — په دا هسې بند کښ خوښ یم تر فلاحَ

د دروغو په وعده هزارداستان یې — په رښتیا دِ غنچه خوله نه کړه مفتاحَ

**اشرف** ستا په مینه مست دي لا به مست شي — په خندا که سپینه خوله کړې ور مباحَ

که یو ځل شي مخامخ د یار له مخَ — نور به نه کا رقیبان دربانِ زخَ

لا به کله خداي په ما د وصل داد کا — چه پوره کړم په رقیب د هجر سخَ

د رقیب له بدخوئي م یار بدخوي شه — روغ سړي پمنوي د پمن پخَ

اندېښنه م د ناموس له خلق نه شي — د یار دیري حیا شوخ کړم تر ملخَ

خپل ویښته د یار دراز په لطافت کښ — چوکه کیږي په عاشق لکه بنخَ

چه سپي توب د عاشقۍ راځنه نه ځي — څکه شم باله شاره په تو په چخَ

که پرې ښې شم که بدې شم ناصحَ — خداي کړ عشق ځما **حمید** په مخ کښ زخَ

مه کوه د دښمنانو په مرګ سخَ — د دوستانو دِ هم دا ده لار په مخَ

له هر چا سره سپینه کړه خپله صافه — مه له چا سره حسد کوه مه زخَ

| | |
|---|---|
| ستا ترلب لعل وګوهر هيڅ | ستا تر زلفو مښک عنبر هيڅ |
| حجاب واچوه له مخ | آفتاب محو کړه قمر هيڅ |
| خريدار چه يې بې نياز وي | د چشمانو دُر ګوهر هيڅ |
| چه د عشق بدرقه نه وي | په خوځواره لار سفر هيڅ |
| بې له يار څه اختر کا | د بې درد عالم اختر هيڅ |
| ستا ترقد تر قامت | صنوبر چنار عرعر هيڅ |
| سنګين زړه دِ نوم نه شه | په ژړا څما احقر هيڅ |
| د عشق يو سبق کافي دي | نور د کُل جهان دفتر هيڅ |

ستا ګفتار **صدرِ خوشحال**
کان دکان کړه د شکر هيڅ

| | |
|---|---|
| زه زيږيم سنا له غمه تر صباح | ته ناترس په پهلنګ خوب کوي تر راح |
| د هجران په درياب ډوب يم غرغري کړم | جګي جګي لاس را واچوه ملاح |
| نيکوکار عالم وفا کا جفا پريږدي | ولي خوند د حنظل نه شي له تفاح |
| نه مِ خان بې بې تا مرم خود پوهيږي | جدائي د تن مشکله له ارواح |
| لا به کله ستا د خولې په جام سيراب شم | شپه او ورځ مِ دغه خواست دی له فتاح |

که دستار په تندِي کږ بېدم کرم نه یم — څونډې تل وِي د بلبل په نوبهار کږ

د کږو ورځو غوغ کړي مدام ژاړِي — ولي سخت وِي د کږِي تورِي پرهار کږ

که عاشق له هجر پرمخ پروت وِي بنائي — روغ صورت د مینا تل وِي په خونبار کږ

که **غفور** له خلقو بیل شِي باک ئې نشته
تل آواز د دوغو لګِي په بیمار کږ

---

د وفا طمع کوي له اعدا پوچ — په بتانو پسې کړي اقتدا پوچ

چه په ګنج د حسن ناست وِي هغه شکلِي — ور بشکاريږي د عاشقو غوغا پوچ

سرکار ئې شه همیش له جګر خون — چه ئې شوه د یار په درکښ دعا پوچ

زه چه غوغ شوم د چشمانو په مصرئِي — اوس مِرزیرمه ده د درد د دوا پوچ

چه د عشق په تجارت کښ بهرمند شِي — هغه وګڼِي د هرڅه سودا پوچ

ګل به وقت د صبحدم کښ پروا نه کا — بلبلان که ورته کاندِ ژړا پوچ

چه د عشق په میخانه کښ مستانه شِي — هغه ګورِي ودانِي د دنیا پوچ

خوهمه د عشق په لارِي کښ تورتم دي — صبورِي ورپسې بیائِي رڼا پوچ

همیشه کاندِ رفتن په قرار نه دي
اي **علیم** ده د عمر بقا پوچ

دا سپاهي به دِ همه له زړه بیرون شي — که دِ بل کړ اندرون دعشق سراج

هغه چارې چه دعشق په جذبه کېږي — کله کېږي په لښکرو پـه افـواج

کِه عاشق په صورت وورکي په زړه لوې دي — څه پکاردي بیهوده صورت د عاج

عشق رسوا کړه په دنیا او په عقبیٰ کښ — یو مجنون دویم منصور بن حلاج

په ځنګل کښ ښکارېږي څه ځنې خبروه — که په زور آواز نه کښلي دراج

له کسرێ د عدالت نامه شوه پاتې — دا دظلم داغ شه پورې په حجاج

د دنیا د تښتني بوده نیمګړي — په هيڅ رنګ به ئې پوره نه کا نسّاج

که عاشق ئې له تهمتَ مه ویریږه — د هرچا د بېغورونو شـه آماج

دخواجه محمّد ګناه وخداي ته څه دي
دکرم بحر ئې دروِمي پـه امواج

ښکه بردم قدم د ښکلیو په دلبار کې — چه مخمور ګرزي په حال کښ دخمار کې

دکبرو پکړو ښبنتن خاکِ سیاه کا — چه دلبر د زلفو تار کا په عذار کې

کجې زلفې کج مژګان لویه فتنه ده — لا ئې کوره چه دلبرو کاندِ دستار کې

د زړه فکر م د یار په لیده ورک شي — لکه جوړ فکر د کور شي په بازار کې

د رقیب له ویرې هسې یار نه دروم — لکه مات دچا په پښه شي ئیرِ خار کې

که دستار په تندي کږ بودمَ ګرم نه يم — څونډي تل وي د بلبل په نوبهار کږ
د کبرو ورځو غوغا کړي مدام زاري — ولي سخت وي د کبري توري پرهار کږ
که عاشق له هجره پرمخ پروت وي بنائي — روغ صورت د مينا تل وي په خونبار کږ

که **غفور** له خلقو بيل شي باک ئي نشته
تل آواز د روغو لګي په بيمار کږ

د وفا طمع کوي له اعدا پوچ — په بتانو يسي کړي اقتدا پوچ
چه په کنج د حسن ناست وي هغه شکلي — وربنکاريږي د عاشقو غوغا پوچ
سرېکار ئي شه هميش له جګرخون — چه ئي شوه د يار په درکښ دعا پوچ
زه چه غوڅ شوم د چشمانو په مصري — اوس مِ زيرمه ده د درد د دوا پوچ
چه د عشق په تجارت کښ بهرمند شي — هغه وګڼي د هرڅه سودا پوچ
ګل به وقت د صبحدم کښ پروا نه کا — بلبلان که ورته کاندِ ژړا پوچ
چه د عشق په ميخانه کښ مستانه شي — هغه ګوري ودانئ د دنيا پوچ
خو همه د عشق په لاري کښ تورتم دي — صبوري وريسي بيائي رڼا پوچ

هميشه کاندِ رفتن په قرار نه دي
اي **عليمَ** ده د عمر بقا پوچ

دا سپاهي به دِ همه له زړه بيرون شي | که دِ بل کړ اندرون دعشق سراج

هغه چاري چه دعشق په جذبه کيږي | کله کيږي په لښکرو پـه افـواج

که عاشق په صورت ووړکي په زړه لوي دي | څه پکاردي بيهوده صورت د عاج

عشق رسواکړه په دنيا او په عقبیٰ کښ | يو مجنون دويم منصور بن حلاج

په ځنګل کښ ښکاري څه ځني خبروه | که په زور آواز نه کښلي دراج

له کسرئ د عدالت نامه شوه پاتي | دا د ظلم داغ شه پوري په حجاج

د دنيا د تنستي بوده نيمګړي | په هيڅ رنګ به ئ پوره نه کا نساج

که عاشق ئ له تهمت مه ويريږه | د هرچا د بېغورونو شه آماج

دخواجه **محمد** ګناه وخداي ته څه دي
دکرم بحر ئ دروِمي پـه امواج

ښکه بردم قدم د ښکليو په دلبار کج | چه مخمور ګرزي په حال کښ دخمار کج

دکږو پکړو ښښتن خاکِ سياه کا | چه دلبر د زلفو تار کا په عذار کج

کجي زلفي کج مژګان لويه فتنه ده | لا ئ ګوره چه دلبر کاندِ دستار کج

د زړه فکرم د يار په ليده ورک شي | لکه جوړ فکر د کور شي په بازار کج

د رقيب له ويري هسي يار ته دروم | لکه مات دچا په پښه شي تيرِ خارکج

پیچ وتاب وته د زلفو دِ نظر کړه
زه هم هسي پیچ و تاب یم الغیاث

په سیلاب سره هیش دخپلو اوښو
د صورت خانه خراب یم الغیاث

چه نه مرګ وِي له جفا نه وفا مومم
له دي عیش په عذاب یم الغیاث

په غمزو مِ د دلبرو زړه غوڅ غوڅ شه
په نغمو سوي رباب یم الغیاث

د ناصح و نصیحت ته مِ غوږ نه دي
مست د میني په شراب یم الغیاث

په تحریر د عشق غمونه نه طي کیږي
درمانده ئي په حساب یم الغیاث

چه آشنا د یار د غم زه **پیر محمد** شوم
د حسرت په اور کباب یم الغیاث

که ښخښتن شي د دنیا د تخت و تاج
غرّه مه شه عاقبت به شي تاراج

پس له مرګ به همه سره یکسان شي
که ګدا که مهاجن وِي که مهراج

چه آخر به ځي له ټورو خاورو لاندِ
د دنیا په چارو مه کړه ابتهاج

د اجل په سنګریزو سره به مات شي
که هرڅو وساتي لوښي د زجاج

که حاجت روا کوي د حاجتمندو
تا به نه کا خداي هرګز دچا محتاج

چه آشنا دربانِ پیښ شي لوي همت کړه
چه دِ جور دي دا پنځه ورځي مزاج

ښائسته کړه خپل ایمان په عمل باندِ
بي زیور ناوي نه لري رواج

| | |
|---|---|
| له ثالبَ مرورشه راتله نه کا | په کوځه کښ د يارخان شه له ما پاتِ |
| هسې شان شوم په هجران کښ بې طاقتَ | آه فرياد ناله افغان شه له ما پاتِ |
| د مجنون په دود مِ ځاي په ويرانه شه | کور وکلي خان ومان شه له ما پاتِ |

زه غنچه غندِ خندان ورځني لارم
افسوس دا **کاظم** ګريان شه له ما پاتِ

| | |
|---|---|
| چه راپيښ د يار بيلتون شه الغياث | ځما زړه له غمَ خون شه الغياث |
| دوصال ساعت به څه کوري په سترګو | چه پيدا غمّاز زبون شه الغياث |
| دآهو په دود د هجر له دهشتَ | ځما ځاي په ميرتون شه الغياث |
| اوس په عشق کښ دهجران له ډيرغمَ | په عذاب ځما ژوندون شه الغياث |
| دغمّاز د بدنيتيِ د سنګ له لاسَ | ډک د وينو مِ لوڅون شه الغياث |
| په سبب دکاهليِ د خپلي بخري | په عتاب راته ګردون شه الغياث |

**فتح علي** هوس به څشکل کيدي شي
جام د بخت دِ سرنګون شه الغياث

| | |
|---|---|
| ستا په هجر کښ بيتاب يم الغياث | لکه موج په اضطراب يم الغياث |
| په وجود کښ مِ اثر د بقا نشته | وفنا ته جوړ حباب يم الغياث |

د عاشق دعا که و لغوږي ځښتن
مبتلا کړه رقیبان په خپل غضب

مړ نو له تېښته شرم دي یونس
د نصیب له پېښي ماړوه جلب

نن مِ ولیده په سترګو هغه یار مست
سم په لاري نه کا تله هغه مې‌خوار مست

په مستۍ ځما د مېني واړه مست شو
کور مِ مست محلّت مِ مست کوځه بازار مست

شیخ ځما د یار د لبو شراب نوش کړه
دي پرِ مست شه خرقه مسته هم زنّار مست

د مستانو مجلس هسي مکان غواړي
چمن مست عمارت مست نقش و نګار مست

د مستانو په مستۍ چه زړه نشاط کا
ویل مست کاکتل مست کانِ هر کار مست

بوندي سترګي چه راپورته په مستۍ کړي
صا کا مست روزګار کا مست در و دیوار مست

زه هم مست د لبو مِ مست د ګلو سیل کړو
ساقي مست شرابي مست هم لاله‌زار مست

په مستۍ ځما په رقص فلک ګډ شه
مطرب مست چغانه مست دف و مزمار مست

د صدیق مستي یواځي د ځان نه ده
قلم مست قلمران مست لړي اشعار مست

ستا په دور ګلستان شه له ما پاتِ
سیر د ګلو د بوستان شه له ما پاتِ

په ژړا کښي مِ زړه نرم لکه موم شه
هغه سخت خاطر سندان شه له ما پاتِ

پتنګ هسي ځاي د شمعي لنبي وسه
چه د چا له خولي يې ويرنه دي نصيب

چانه ووايم د غم له بده حال
چه د مره دخولي تقرير نه دي نصيب

باد څه ګوره ده په موټي کښ راوړي
د حباب د کور تعمير نه دي نصيب

ستا په زلفو کښ دا بند زړه غواست له چا
چه خلاصي د دي اسير نه دي نصيب

د بڼو قلم څما په اوښو لوند دی
لا د غم د حال تحرير نه دي نصيب

ستا د نوم آخسته خوله د تصوير غواړي
خو دا کار يې له تقدير نه دي نصيب

کوم يو سيځ ده د لاله سينه داغلي
چه مرهم يې د ضمير نه دي نصيب

**محمدي** اوښي م غم په مخ جاري کړي
و دريده د دي بهير نه دي نصيب

که د ښکلبو د ديدن لري مطلب
مفيد يې په طلب شه روز و شب

شهد و شير قند به دواړه فراموش شي
که يو ځل شي له محبوب لب په لب

د دلبر وصل منصب جاوداني دي
صدقه تردا منصب شه بل منصب

د وصال قدر پوښتنه له مهجورانو
څه پروا د اوبو کړي د وچي کب

د دلبرو په ديدن عاشقان پايي
نور يې هيڅ د ژوندانه نشته سبب

ښه متاع له هر دکان چه وي ښه ده
د معشوق پوښتنه مه کړه د نسب

کوږ او بوند کړي هسي شان د نس هوا
چه لړي سره دوا او ناروا

شوخ بې شرم کړي حرص نه هسي حدَ
چه نه شرم کړي له خدایَ نه پروا

چه د نس په زیرمه خدای درشخه هېر شه
دا له چا شوي وابسته له چا سوا

نه به ته دا سرکښ نس په بدو موړ کړې
نه به ږني زهر قاتل د چا دوا

څو طیار خوان و الوان درلوه نه ښي
په یوه طعام دِ نه یخنیږي خوا

وږي هزار ثاروه تارخه د ناکسانو
وابه ولي په یوه نمړيِ حلوا

چه طلب درشخه نس تارخه تاروه کا
زیرموي صبا حلوا بیگا بسوروا

په حیا کښې سړي وږي تږي ښه دي
نه به شهدو شکر موړ په بد رسوا

چه په سوال اوږدوي لاس چا ته حمیدَ
ښه يې وږي لاس ترخني بي نوا

هیڅ په عقل په تدبیر نه دي نصیب
چا تړلي په زنځیر نه دي نصیب

سټوري والوزي که هر څو نمر به نه شي
د بادشاه بخت د فقیر نه دي نصیب

په سینه کښې مِ زړه ښه دو ته تل دي
د کوږو بڼو سنا تیر نه دي نصیب

د تصویر غنچه په باد گُل شوي نه ده
چه هوس د زړه زهیر نه دي نصیب

سنا د زلفو دُري پړ پړ کاږه سم کړه
لا د سپي غماز تعزیر نه دي نصیب

| | |
|---|---|
| دنګین عالم خبر ورځني نه دي | هسې ورک شه سنا په غم کښ نام ځما |
| د ذرې په شان مې تاب د آفتاب سوځي | هيڅ سبب د راحت نه شه بام ځما |
| د لاغر صید له شرمه هسې آب شه | چه سرسبزه کړه دانه ګل‌دام ځما |
| صبح و شام مې کړه همرنګ سیه روزي | خکه نشته چرې صبح و شام ځما |
| د سیماب په شان ئې نه موم بې مرګ | د حیات نه لاس ورک آرام ځما |
| سناد مبني راز مې هسې پوشیده کړ | چه په تا نه شه خبر سلام ځما |

په ګلشن دي **شیدا** بیا پرتو د صبح
که په سپین لباس کا زیب ګلفام ځما

| | |
|---|---|
| ساقي زر پاڅه و ما آبِ‌حیات را | وربسې نُقل د سرو شونډو نبات را |
| آزادي مې خوښه نه شوه له دې پسَ | ځما پښو لره زنځیر د عشق‌حات را |
| که هرڅو د هجر غم راباندې ډېر شي | لکه غر د یار په مینه کښ ثبات را |
| نوکرې دِکرم دنیا مې پکار نه دَه | یارَ ما لره دخپل دیدن برات را |
| غیر فکر مې له دلَ زدوده کړه | خیال په زړه د یار دمخ لکه مرآت را |
| په کمال چه دي نصاب دِتا د حسن | مستحق یم آشنا ما لره زکوٰت را |
| ربَّ دا آرزو **کامګار** لري په زړه کښ | چه هرڅا ته وِي یک‌سان هغه صفات را |

# چمن بې نظیر

که فلک وکړي ګردش په کام ځما | کنډِ کښیوزي دا آهو په دامِ ځما
اورم بل په هر اندام د اشتیاق شي | چه جلوه کړي هغه ګل اندامِ ځما
ماچه وصل په هجران کښ دیار بیاموند | په رڼا ورځي بدل شه شامِ ځما
لکه نقش د نګین په نګین ډوب وي | هسي ډوب شه په ګوښه کښ نامِ ځما
زه چه تل مخموري سترګي دیار وینم | ډک په میو د عشرت شه جامِ ځما
تر ابد ستا د وروځو و محراب ته | شه خصلت رکوع سجود قیامِ ځما

چه دولت د بیخودئ **معزالله** راغي
مملکت دي د بښادئِ مدامِ ځما

په دریاب به څه رنګ تر شي کام ځما | چه نسکور لکه حباب دي جام ځما

له غمونو به خلاص نه شي دغم خویش یي ‏ ‏ که بدګوي و بدآموز و بداندیش یي

مه بدوایه مه بد آوره مه بد وینه ‏ ‏ درویشي د مبارکه شه نور درویش یي

ستا په زخم به دارُو مرهم نور کیږي ‏ ‏ که په ځان دارُو مرهم دچا په ریش یي

که د ځان په خپله شمار تر هرچا کم کړه ‏ ‏ نور څما په پوهه نه تر هرچا بیش یي

یا به دد یا به منکور یا به لړم یي ‏ ‏ که دا رل کړي یا چیچل کړي یا په نیش یي

په خپل دین نظر له دیونه دېر دي ‏ ‏ څه جاسوس دچا د دین دچا دکیش یي

که هرڅو درخني عیبوم بدخوي ‏ ‏ نه په هره کوڅه بیا و ما ته پیش یي



په کردار توره مشکنره یي خوشحال

په ګفتار سره د سپینو درو ویش یي



که بادشاهان دي که درویشان دي ‏ ‏ که په دا مینځ کښ بنه بنه ځوانان دي

که په زرګونو کالونو پاتي ‏ ‏ عاقبت واړه د ګورستان دي



په شماره یو څو سړي دي — چه ئي جوړ را سره نیت دی
یو اکبر په غم شریک وه — هغه هم په خپل عشرت دي
که بادشاه دي که خانان دي — را ښکاره ئي حال حالت دي
د هیڅا برکت نشته — خان خاني شوه قیامت دي
ما چه دا قصیده ووِ — په ډیلي مِ اقامت دي
څلورمه د رجب وه — زر اووه اویا هجرت دي

نور څه مه وایه **خوشحال**
که څه وايي قباحت دي

دانا په حال نادان کله خبر دي — چه په خپله نادانئِ کښي اوتر دي
د لیچن په سترګو وخلیږه ستوري — وعالم ته ئي لغري وکړي چه نمر دي
دا داغونه چه مِ ایښي په جګر دي — خو نهم ما زده چه مِ پوخ څني جګر دي
که څوک خپلي سترګي وساتي غم نشته — چه په زړه ننه پرېباسي خپل نظر دي
خداي دِ هیڅوک په دنیا کښي عاشق نه کا — عاشقي په خپل صورت باندِ لښکر دي
لیوني زړه مِ پروت په خندا لاړه وه — راشه ګوره چه نن بیا په ژړا سر دي
چه د څکو مرجونژا له بحر وکیښ — راشه ګوره د **خوشحال** کلام ګوهر دي

پښه مې هسې رنګ په درد شوه — چه تېرېږي يو ساعت دي
آس چه ورو ورو مې په لاړي — پړوانه ځني آفت دي
چه د سر بلا په پښو شوه — دا لا خير خيريّت دي
په دا هم شکر بايده دي — يو تر بل بتر زحمت دي
ما وِ تېر شه ولې يوه شوم — لا څه پاتې مصيبت دي
ما وِ اوس خو مهربان شه — لا ئې ما سره شدت دي
هند په ما باندِ دوزخ شه — که په نور عالم جنّت دي
بنديوان ور لره راغلم — دا يو څو مياشتې فرصت دي
هغه شان لکه بندِي وم — نورِ مِ لا تيري محنت دي
هره ورځ ورتلل دربار ته — ګوره دا څه مشقت دي
د بل حکم پرِ زندان شي — چه پر خپل حکم عادت دي
نه شيرين شيرين ياران شته — نه له چا سره صحبت دي
نه خپل وړکړِ وانيول شته — نه خپل حکم حکومت دي
نه د ښکار هوا هوس شته — نه د نورڅه مصلحت دي
يو په بل پورته نشته — هسې ښهر بد خصلت دي

بل هغه سړي احمق بللي بويه     چه د غوښتو کړ به کانړ په ډاکونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه     چه به سود و سودا کانړ د بازونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه     چه برمنده کنّه لانبي په سيندونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه
چه غوږ نه کا د **خوشحال** په دا حرفونو

چه بهتر تر هر نعمت دي     نور څه نه دي روغ صورت دي

چه ئې دا نعمت روزي وي     سر تر پايَ عنايت دي

که ئې نه پيژني قدر     روغ صورت لوي غنيمت دي

ستا په تن کښ ځان يواځي     تر جهانَ زيات قيمت دي

که د ځان نه وي جهان وي     په عدم ئې اشارت دي

دا جهان لکه معنیٰ شه     ستا وجود ئې عبارت دي

چه په ځاي ئې عبارت وي     د معنو همره قوت دي

د صورت د خوشحالئ     مدار واره په صحت دي

چه صحت د صورت نه وي     ور ته خس مال و دولت دي

رنځ په کور کښ هم بلا دي     لا څه نور چه په غربت دي

بل هعه سړي احمق بللي بويه ۔ چه بزرګانو سره خير ښي په جنګونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه يک لخته به اعتبار کا په ثربرونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه په هر طبيب دارُو کا د رنځونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه به بي توري دعوى کا د ملکونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه به جنګ وته پريکړي ځي ترملونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه لوئي کا په لباس په کسوتونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه به دي غواړي لوئي په نسبونو

بل هغه سړيا احمق بللي بويه ۔ چه د تيښتو ګمان ورک کا له مريونو

بل هغه سړي احمق بللي بوبه ۔ چه به مال و دنيا نه خوري په کورونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه بدخواه سړي به پرېږدي په رويونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه بي ځاي زغلول کا د آسونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه پيران به کښينوي په خپلو خوتو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه بيحدَ تکلّف کا په ښايونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه خبري کا په سترګو په لاسونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه ۔ چه به لوړي د سړيو په سرونو

بيهوده په ځان غوّه دي دا انسان
په ساره په غارمه چينګه خوله حيران

ليوني ملال دلګير دخوب په ورل کښي
نه د لوږي نه د تندي لږي توان

په يوه ذرّه خبره خوار خسته شي
په يوه ذرّه سرخوږي شي په ځان

په دا هسي رنګ څوکبر څو روږي کا
چه نظر يئ له خودئ وږي په آسمان

واره عمر تيروي په دا غفلت کښي
تر هغه پوري چه ومري په دا شان

په ژوندون چه د خپل ځان فکر و نه کا
پس له مرګ به هغه کا ډير ارمان

زاهدان او شيخان هر لوري نه ډير دي
دخوشحال ختک پکار دي عارفان

چه م نه په زړه کښي فهم فکر وکړ
احمقان را ته ښکاره شول په خويونو

يو هغه سړي احمق بللي بويه
چه باور کا د غليم په سوګندونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه
چه پاروُ شي د لړمو د مارونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه
چه په سينه ږيره خيال کاندي دجونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه
چه د ښځو سره پاڅي په جنګونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه
چه د خسر کوه به اوسي په کالونو

بل هغه سړي احمق بللي بويه
چه ولښته يه توروي په خضابونو

خوچه په خو کال شمشیرخان ترین یوکار کړ ‌ ‌ مابه په خو میاشتي واړه چار کړه مستحکم

دا مکر فریب چه دحیات ترین هنر دي ‌ ‌ کله دا د مرد دا د ښځي دي عالم

پوهه تمیز نشته داجهان په سترګو روند دي ‌ ‌ ښځه دخانۍ په خطاب کاندِ مکرم

دا انشا اودا املا چه دي شیطاني بولي ‌ ‌ تل باندِ نفرین ووري له لوح له قلم

حال حقیقت وایم چه هرچا وته معلوم شي

زه چه شاعرنه یم هي توبه له مدح ذم

که همیش دِ همنشین وِي تورماران ‌ ‌ ښه وِي دا نه چه ترین وِي بدکاران

هرچه ستا عیب ونا وته ښکاره کا ‌ ‌ په جهان کښ هم هغه ګڼه یاران

په کردار کښ یار اغیار سره بېلېږي ‌ ‌ تر یارانو ډېر لباس کا اغیاران

دکمذات یارِي به هېڅ وفا ونه کا ‌ ‌ لا په تېره بي نمازان او میخواران

لکه تخم هسې بر هسې ئي بوټي ‌ ‌ نه ئي زمکه خوندبدل کا نه باران

د زړه رازوچاته نه وېلي بویه ‌ ‌ چه دَ زمکي په مخ نشته رازداران

په قیامت به یو په یو واړه جواب لي ‌ ‌ که میږي ملخي پایمال کړي شهسواران

دخوشحال باندِ سلام شاهان د وخت دي

په سپېرو ابرو لرلي خاکساران

بېهوده په څان غوږ دي دا انسان په ساړه په غارمه پ خوله حيرن
بيوني ملال دلگير دخوب په ورل کښښ نه د لوږي نه د تندي لږي توان
په يوه ذرّه خبره خوار خسته شي په يوه ذرّه سرخوږي شي په ځان
په دا هسي رنگ څو کبر څو بولي کا چه نظر ئي له خودئ وي په آسمان
واړه عمر تيروي په دا غفلت کښښ تر هغه پوري چه ومري په دا شان
په ژوندون چه د خپل ځان فکر و نه کا پس له مرګ به هغه کا ډير ارمان

زاهدان او شيخان هر لوري نه ډير دي
دخوشحال خټک پکار دي عارفان

چه مې ښه په زړه کښښ فهم فکر وکړ احمقان را نه ښکاره شول په خپلو
يو هغه سړي احمق بللي بويه چه باور کا د غليم په سوگندونو
بل هغه سړي احمق بللي بويه چه پارو شي د لړمو د ماروتو
بل هغه سړي احمق بللي بويه چه په سپينه ږيره خيال کانړ دجونو
هغه سړي احمق بللي بويه چه د ښځو سره پاڅي په جنگونو
سړي احمق بللي بويه چه د خسي کوه به اوسي په کالو
سړي احمق بللي بويه چه وښته يه توري په خضابونو

خوچه په خو کال شمشیرخان ترین یوکاری
مابه په خو میاشتي واره چار کړه مستحکم

دا مکر فریب چه دحیات ترین هنر دي
کله را د مرد دا د ښځي دي عالم

پوهه تمیزنشته داجهان به سترکو ړوند دي
ښځه د خانۍ په خطاب کاندِ مکرم

دا انشا او دا املا چه دي شیطاني بولي
ټل باندِ نفرین دوري له لوح له قلم

حال حقیقت وایم چه هرچا وته معلوم شي
زه چه شاعرنه یم هي توبه له مدح ذم

که همیش دِ همنشین وي تور ماران
بنه دي دا نه چه قرین وي بدکاران

هرچه ستا عیب وتا وته ښکاره کا
په جهان کښ هم هغه کنړه یاران

په کردار کښ یار اغیار سره ښلیږي
تو یارانو ډیر لباس کا اغیاران

دکمزات یاري به هیڅ وفا ونه کا
لا به نیره بي نمازان او میخواران

لکه تخم هسي بر هسي يې بوټي
نه يې زمکه خوندبدل کا نه باران

د زړه راز وچا نه نه ویلي بویه
چه دَ زمکي په مخ نشته رازداران

په تمامت به یو په یو واره جواب رلي
که میږي ملخي پایمال کړي شهسواران

دخوشحال باندِ سلام شاهان د وخت دي
په سپیرو ابرو لرلي خاکساران

هرچه زه یې وژلم په زندان کښې هغه واړه ‌ ومړل خوار شول ورک شول خالي نه دي له الم

زه لکه یوسف له بنده خلاص شوم کامراني کړم ‌ پاک پاکیزه زړوم اوډ مې نه کړه بڼا کم

زوي مې اشرف خان دي چه خوړ شوي کور پرېښول شه ‌ زه چه په بند لاړم خیلخانه مې شوه برهم

خلیرپښته زوي نور لرم یو دي په کښې چه لوي دي ‌ واړه برخوردار شه خداي یې وساته له غم

اوس پنځه نمسي لرم افضل او اشرف خان دي ‌ خداي یې برخوردار کړه طمع ډېره تر لولم

یو مې سکه ورور دی چه یې لار د حق نیولې ‌ دوه ورونه مې نور دي یو یتیم دویم لېنم

ځاي مې ملک پود دي چه یې سراي بولي وکړي ‌ قام اولس مې پووت دي ترلکۍ په غوره په سم

شل زره خوانان لرم همه له یوه ذات ‌ واړه یکانه شا په خدمت کښې راته خم

څه شو شمشیرخان ترین که پوځ پنځ هزاري دي ‌ ما ونه هیڅ نه دي مګر بې اوم ښلغم

څو به د منصب په زور څما برابري کا ‌ څه مجال د ګډ چه به سیالي کا له ضیغم

خوار دې یوسفزي شي چه تورن یې حاکمي کا ‌ اوس که ښکار د باز کاندې هیلۍ نه ده کرم

زه د شاه جهان بادشاه د ننه د زړه سرو ‌ چارم اورنګزیب په نادانۍ کړه برهم

دم وهلي نه شم څوک مې داد د لاسانه کا ‌ داغ لرم په زړه کښې بې طبیب بې مرهم

څو زړه سواره دي سرګردان په څو کالونه ‌ زه که په زړه روغ وي چار به ولې وه درهم

سل کال که تیر شي دا مهم به فیصل نه شي ‌ دا زنګ چه کیږي کوره څه وشي له همه

مینه ئې په زړه د علماؤ راکړه ډېره
مینه ئې د دور د شیخانو راکړم کمه

نه خراباتي نه قمار باز نه زناکارېم
نه قاضي مفتي چه ئې نظر په خو درهم

بخره ئې د تیغ راکړه په اصل کښې پښتون یم
پلار په نیکه نه یم بي دولت بي حشمه

پلار م سور کښې وګور ته لاړ نیکونه واړه
ډېر خلق پېر ومړ خون ئې لاړ شه تر عالم

پلار م شهباز خان په سخاوت لکه حاتم وه
زړه ئې د زمري په توره تېز وه تر رستم

تېینګ ولاړ په شرع تل ئې کار وه په رښتیا کښې
خط سواد ئې نه وه نور دانا وه له افهم

خو به نیکه ستایم یحیی خان جنت ئې ځای شه
روغ لکه یوسف وه درست له سر تر قدم

بل سړي که سور وه دي پیاده سره به سم ود
تد قامت ئې همره د مړانې چار پېر تم

بل نیکه خما ملک اکو چه په خټک کښې
ده راوړه دا بخره د لوئې مقدم

ډېرش کالونه وشول چه م پلار دي شهید شي
مړ کړ یوسف زیو ما هم اور کړه باندې سم

نور پښتانه ډېر دي خیوزه په کښې توره یم
واخلم ورکړم بند کړم پرېږدم وونیم تر دم

ډېرو السونو علیمي را سره وکړه
سر بې را ته کوز کړ هاله خلاص شول له ماتم

یو یوسف زئي دي چه په ما ئې منت بار کړ
لا په آوزیو د ننګ چار ده مسلم

زه چه د غفلت په کال په بند د اورنګ زیب شوم
کور د جیلخانه م په کښې ډېره وه بې دم

خو کال بندي کړم اورنګ زیب په هندوستان کښې
روغ راغلم تر کور بیا ئې خلاص شوم له ستم

دا ناتار چه په جلي ذکر شیخان کړي
کله زه په تاخت راضي په دا ناتار شم

ما دا هسي شیخي دوي نه ده نجبنلي
په محشر د د رندانو په قطار شم

چه څرګند ه سرباززي کا سند د تورو
زه خوشحال ختک نن هسي هنر خار شم

حیران یم نه پوهیږم چه زه څه یم څه به شم
له کوم یم راغلي بیا په کوم لوري به شم

خبر د هغو تللیو بیا په بیرته چا را نه وړ
له حال له احوال که ئي هرڅوک وپسپېتم

دلي چه څرک لیده شي نن ئي شپه په دابانه کښ
آخر ئي له دي ځایه وار په وار واته کنږم

جهان یو کټوری شه زه په مثل د میږي یم
حیران په کښ چارورنم لاس ولېني په کښ وهم

دنیا وته چه ګورم کار و بار نه د وکړي
د وړکیو تماشي دي زه ئي هم ور سره کړم

چه نه پرِ مبتلا ئي که دِ مال دي که دِ ملک دي
دا واره بي له خوب بي له خیال نه وینم

چه نور ولیننه دِ سپین شول خوبي دِ نور نه شه خوشحال
باور کړه اوس ناحق د سړي نوم در بانډِ بد دم

د خداي منت را بانډ چه ئي هست کړم له عدم
بل خلقت ئي نه کړم را پیدا شوم له آدم

پښت په پښت راغلي مسلمان محمدي یم
چار د چاریارانو سره واړه منم سم

درست په دا پوهیږم چه څلور مذهب حق دي
زه د حنفي مذهب دعويٰ لرم محکم

| | |
|---|---|
| ږم څه کړم چه محتاج د طبیب نه شم | ړي لږ خوره لږ دخول کړه لږ مقال |
| ږم څه کړم چه هر څوک په مابین ښي | ړي مه وایه دروغ مه کړه جنجال |
| ږم چا سره تدبیر کوم په کار کښې | ړي هر چه رسیدلي تر کمال |
| ږم چا سره نیکي د کړلو نه ده | ړي هر چه ابلهان دي غیرسال |
| ږم کوم سړي د دښمن بللي بويه | ړي هر چه په بنیادي ږ ښي ملال |
| ږم چا سره خويښي دوستي د کړه ده | ړي هر چه تر تا کوز لري احوال |
| ږم کوم سړي مؤمن بللی بويه | ړي هر چه راضي نه ږي په وبال |
| ږم کومه چار جنت ده په دنیا کښې | ړي ژکه چه يي خوب ږي هم جمال |

ږم څه ږي د **خوشحال** خټک خبري
ړي وايه در گوهر ږي عقيق لال

| | |
|---|---|
| ښما خوب له اندیښنو نه ښي بیدار شم | و عالم و ته په دا تهجد گذار شم |
| غرونه غرونه گناهونه را په یاد ښي | د خپل خدای نه په توبه په استغفار شم |
| استغفار په خوله په زړه د شر نکرونه | بیا له خپل استغفار شرمسار شم |
| و دي دور د شیخانو حال ږم وکوت | چه ساعت ور سره کښینم تر دار شم |
| چه حلال کسب یي نه ږي شکراني خوري | زه حیران په دا شیخي د شیخ مکار شم |

وِرِم طمع قطع نه بويه له چا نه — وِئي هرچه ښه ئي اصل ښه خصال

وِرِم څه دِي د دنيا دا بني چاري — وِئي واړه انساني دِي خواب وخيال

وِرِم کوم بخت وجدل دي چه تل ښه وِي — وِئي دا د علم بحث دي جدال

وِرِم کوم رښتيا چه ئو واېي پرې سپک شي — وِئي چل هنر چه واېي دم درحال

وِرِم کوم يو بې نوا ښللي بويه — وِئي هرچه بې په غاړه ډېر عيال

وِرِم کوم سړي نيکبخت بللي بويه — وِئي هرچه سخاوت کا په اموال

وِرِم کوم سړي لايق دي د ستاينې — وِئي هرچه په بخښلو شي خوشحال

وِرِم خلاص په شم په څه له بد يار — وِئي تل ځني غوښتنه کړه د مال

وِرِم دار او نرس له کوم شخص بويه — وِئي هرچه ورته يو حرام حلال

وِرِم څه څيزونه ګران په مرد تړشان دِي — وِئي دين اوبل دانش دي د رجال

وِرِم څه دي چه دانش پرې ضايع کيږي — وِئي لافې د دروغ و قيل و قال

وِرِم لاف هډو په څه تر سره کيږي — وِئي زر بويه خوانات بويه قتال

وِرِم څه دي چه نښان د ځوانمردئ دي — وِئي عفو په هنګام د استقلال

وِرِم څه رنګ په والوزم آسمان ته — وِئي دا شي د همت په پر و بال

وِرِم کومه چار بهتره تر هرڅه ده — وِئي هرچه نيک عمل وِي نيک افعال

د عسلو خوارہ کله هغه مرچي
چه حذر کا د چیچې له بدَ نیشَ

لا له وقتَ د طبیب طلب بائده دي
څو لا بایي په دنیا د زړه له ریشَ

په هیڅ دین کښ ما ونا لیدلي نه دَه
خبرداریم د هرچا له دینَ کیشَ

په هر غشي چه زخمي شوم بیا م وکوت
هغه غشي وه په تن ښما له کیشَ

هیڅ پروا اندوه دبل د بدو نه کړم
څوم بیا نه شي بلا له ځانَ خویشَ

په پیغام د بوسي سود نه شي **خوشحالَ**
چه ښما په خوله مین یي را نزدي شَ

نن م وکړه له استاذ نه یو څو سوالَ
سرافراز یې په ځواب کړم د هر سال

وړم څوک دي چه همیش په یوه حال یي
وې تل په یوه حال دي ذوالجلال

وړم څوک دي چه همیش په بل بل حال دي
وې خوار بني آدم لري دا حال

وړم سر د نراغت څه وِ دري څیزَ
تندرستي او ایمني د دنیا مال

وړم کوم سړي لایق دي د یاریځ
وې هر چه دروغ نه لري طیتال

وړم ځوان دِ په ځوانیځ کښ کومه چار کا
وې هر زمان د علمِ اشتغال

وړم زوړ دِ په زوړوالي کښ کوم کار کا
وې جوړ دِ کا له علمَ څلِ اعمال

وړم کوم سړي په تل وي په حرمت کښ
وې هرچه له چا نه کانڼ هیڅ سوال

وړم
٥

وِرِم طمع قطع نه بو يه له چا نه
وِئِ هرچه پته ئِي اصل پنه خصال

وِرِم څه دِي د دنيا دا بني بني چاري
وِئِ واړه افساني دِي خواب وخيال

وِرِم کوم بحث وجدل دي چه تل پته وِي
وِئِ دا د علم بحث دي جدال

وِرِم کوم رښتيا چه وُ وايي پر سپک شي
وِئِ چل هنر چه وايي دم درحال

وِرِم کوم يو بي لنوا بللي بو يه
وِئِ هرچه بې په غاړه دير عيال

وِرِم کوم سړي نيکبخت بللي بويه
وِئِ هرچه سخاوت کا په اموال

وِرِم کوم سړي لايق دي د ستاينې
وِئِ هرچه په بخښلو شي خوشحال

وِرِم خلاص يه شم په څه له بدَ يارَ
وِئِ تل ځني غوښتنه کړه د مال

وِرِم دار او ترس له کومَ شخصَ بويه
وِئِ هرچه ورته يو حرام حلال

وِرِم څه څيزونه ګران په مرد ترڅان دِي
وِئِ دين اوبل دانش دي د رجال

وِرِم څه دي چه دانش پرِ ضايع کيږي
وِئِ لاف د دروغ و قيل و قال

وِرِم لاف هله په څه ترسره کيږي
وِئِ زر بويه څوانان بويه قتال

وِرِم څه دي چه نښان د ځوانمردئِ دي
وِئِ عفو په هنګام د استقلال

وِرِم څه رنګ په والوزم آسمان ته
وِئِ دا شي د همت په پر و بال

وِرِم کومه چار بهتره تر هرڅه دَه
وِئِ هرچه نيک عمل وِي نيک افعال

| | |
|---|---|
| د علو خوارہ کله هغــه مرېي | چه حذر کا د مچيږ له بدَ نيشَ |
| لا له وقتَ د طبيب طلب بايده دي | څو لا يايي په دنيا د زړه له ريشَ |
| په هيڅ دين کښ ما دنا ليدلي نه دَه | خبردارېم د هرچا له دينَ کيشَ |
| په هر غښي چه زخمي شوم يارم وکوت | هغه غښي وه په تن خما له کيشَ |
| هيڅ پروا انده دبل د بدو نه کرم | څوم پا نه ځي بلا له ځانَ خويشَ |

په پيغام د بوسي سرد نه ځي **خوشحالَ**
چه خما په خوله مين يي را نزدي شَ

| | |
|---|---|
| نن م وکړه له استاذ نه يو څو سوالَ | سرافراز يُ په څواب کرم د هر سالَ |
| دِ م څوک دي چه هيش په يوه حال يې | دِ يُ تل په يوه حال دي ذوالجلالَ |
| دِ م څوک دي چه هيش په بل بل حال دي | دِ يُ خوار بني آدم لري داحالَ |
| دِ م سر د نراغت څه دِ دري څيزَ | تندرستي او ايمني د دنيا مالَ |
| دِ م کوم سړي لايق دي د باريُ | دِ يُ هر چه دروغ نه لري طيتالَ |
| دِ م څوان دِ په څوانيُ کښ کومه چاره کا | دِ يُ هر زمان د علم اشتغالَ |
| دِ م زوړ دِ په زوړوالي کښ کوم کار کا | دِ يُ چرې دِ کا له علمه ځنې اعمالَ |
| دِ م کوم سړي به تل وي په خومت کښ | دِ يُ هرچه له چا نه کاندِ هيڅ سوالَ |

د مضمون د نزاکت غمزه ورځنه

سر تر پاي درست صورت سره یو راز

| | |
|---|---|
| اي په خپل گمان کښ بروس | له اصلي کار مایوس |
| دانه نه یې چه د مغز يې | بې دانې حبطه بوس |
| وخپل عیب و ته روند شوي | د پردي عیب جاسوس |
| چه پیدائي جاسوسي شوه | آکر بنه شه تر آبنوس |
| د طوطي برابر نه یې | که نګار لري طاؤس |
| که غوټه کړې پټ چرګوره | په دا باز نه شي پښوس |
| لعل و در پر حبطه ږدي | چه رنګ نه لري عروس |
| راشه مخ په آئینه کړه | چه چهره شي در معکوس |

د خوشحال خټک تر یه ده

ستا له زرق له سالوس

| | |
|---|---|
| په طلب کښ د سستي وینم درویش | چه وزلي یې د دي خوري له ولیش |
| نعمتونه رنګارنګ دي په هر لوري | په غوښتوني پاندِ نه ده چا پیش |
| څو طلب همره موندل دي په دا دور | بلکه لا تر طلب بخره مرحي بیش |

| | |
|---|---|
| یا به درست په حسد پوریا به جاهل وي | چا چه زره په دا خبرو ناخرسند کړ |
| جاهلان لکه کلاغ کندکي خواره دي | شتو طوطیان یې د زړه مهر په قند کړ |
| نه م سود نه م مقصود شته په دا کارکښې | محبت خما په غاړه دا کمند کړ |
| چا خما مرونډ نیینک نه کړ په دا کارکښې | ما د سر سړي نه خلاص په زور مرونډ کړ |
| هم د زاردي هم د سخ که فهم وکړي | زړه چه تا د شاعرۍ کار پسند کړ |
| سخ د دا چه سخندان د زمانې شوي | زار د دا چه د په فکر زړه نژند کړ |
| تر قیامت به یادیږي په جهان کښې | هر سړي چه خدای په فضل ارجمند کړ |

عشق ته تر اورنګ زیب پادشاه بهتر یي
چه خوشحال د په عالم کښې سربلند کړ

| | |
|---|---|
| لکه غشي لره بویه تیرانداز | هسي شعر لره بویه سحرساز |
| همیشه د زړه په لاس تله دوزن | زبات وکم دوزن یو نوري عماز |
| په نور آس د حقیقت ناوي سوره کا | په سپین مخ پلو بیولي د مجاز |
| سل جلوي سل کرشمي سل مکیزونه | په نظر کښې کا بنکاره د ستړګو ناز |
| د صنعت زیور په غوږ نګ پر پوري | د تشبیه چندنړ چوا بانډ طراز |
| د تجنیس پایلي جوري په پښو کړي | د ترصیع حمیل په غاړه اوبود که راز |

په پښتو شعر چه ما علم بلند کړ — د خېرو ملک مې فتح په سمند کړ

مدعي د توري شي اوراورکي وه — د سهیلي غُنډ مې خان باندې خرکند کړ

راز د زړه هرګز ساته نه شي په زړه کښې — په ساته کښې ئې اسناد وماته پند کړ

یو په حال او په ماضي کښې فایده نه وه — څه بنکاره ئې د خېرو را ته خوند کړ

د مرزا دیوان مې ومانړه په ګوډي — سحره مې ارزاني خویشکي زمند کړ

که دولت وه که واصل وه که دا نور رُو — په خېرو مې د هر یوه ریشخند کړ

قتلمي مې ورنه سازي کړي د قندو — د اوربوشو په پوریئ چه چا شخوند کړ

لعل و دُر مې ورته ویل د نظم — د مشکنړو بخاره مې مستمند کړ

هر کلام مې واردات دي یا الهام دي — چه موزون مې په تقطیع د بحر بند کړ

په تشبیه او په تمثیل په نزاکت کښې — عذوبت مې د خېرو چند درچند کړ

په تازه تازه مضمون د پښتو شعر — په معنیٰ مې د شیراز او د خجند کړ

د بوستان وني مې واړه پیوندي دي — حقیقت مې د مجاز سره پیوند کړ

نه اندوه د مدح ذم به هغه کښې یم — چه د زړه په زور مې شعر چا پسند کړ

په فارسي ژبه مې هم ژبه ګویا ده — په پښتو ژبه مې خلق بهره مند کړ

د جاهل په بخره نش سر شوروك وي — آفرین مې په خېرو دانشمند کړ

که دنیا ډیره ګټي په ښان يې نه خوري — د شوم نوم به په تا کښېږدي چل پېر
که په هر ځای لوسته کړي د خپلو زور — دا به وايي چه د ځلا يې دي دا زر
که توانګر شي د ناروت په نام باله شي — بې‌شعور کم‌بخت باله شي ناتوانګر
که ښې ښې خيري وکړي په ښواب کښ — وايي ښه حرام‌زاده دي لنډه ورر
که ښواب وچا ته نه ورکړي سرکوز کړي — وايي هيڅ نه دي عزولی بې هنر
که په توره مړني شي ګډوي يې — ليوني جاهل دِ بړلي هم ابتر
که له جنګ په ستنه اوسي وار ګوري — وايي خان ساتي نامرد دي نه زره‌ور
که زربفت او تېلک آغوندي تکليف کړي — وايي دا د ښځو خوي دي نه دِ شر
که ساده جامې آغوندي درته وايي — چه د شوم او د ممسک بدي هسي چر
که سفر د هر ديار کړي درته وايي — چه حرص يې ګرزه‌وي په هره لېر
که په کورکښېني هيڅ لوري وته نه ځي — وايي کښيناست بخيل کور لکه دختر
که لونډ ګرزي واده ته هوس نه کړي — بيا دِ بولي هيز نامرد مُرده ذکر
که واده وکړي بيا دا در بانډ وايي — آزاده بڼه نه وه شه په بلا سر
راځه زر دا هسي رنګ ملامت نورشته — که يې کښم ور ته به ساز کړم يو دفتر
نه او ته د چا په ياد په ښه شماره يُو — د عالم له خولي خلاص نه ده پيغمبر

چه د عمر يې بنياد په هوا ايښي
په دا هسې ژوندون څه دې اعتماد

د آدم خاورې د غم په اوبو نم دي
په قدرت خميره کړې چل بامداد

انبيا و اوليا لاړل وګور ته
نه به وايي چه د دوي نه وه بنياد

د دنيا ژوندون شيخ نه دې که يې ګوري
چه شيبا ځنې بيا نه مونده مراد

هميشه که ژوندون غواړې درته وايم
هميشه کړه د نفس سره جهاد

مسافر چه يې سفر وي څو د وړاندې
په مقدار د هغې لارې اخلي زاد

راشه زړه له عنبرو پرې کړه اې خوشحالَ
په اميد يې د ديدار لره زړه ښاد

په ښيخ رنګ به د عالم له خولې خلاص نه شې
که په خوي له فرښتو شې برابر

په ځوانۍ کښې که تقوی کړې دا به وايي
له هوس ورت خاورې يې په سر

په پيرۍ کښې که هرس کړې دا به وايي
چه په سپينه ږيره څه کا کيږي خر

له جبره که خوله ولښې خاموشي شې
نوم به زر کښېږدي په تا د غوبل ستور

که خوله پرانزې هر چا ته دا به وايي
چه ګرېږي ماغزه نه لري د سر

که له خلق ګوشه ګير شې دا به وايي
چه ځان روغ په خلقو نه وينې مګر

که هر چا لره ور درومې دا به وايي
چه صبا په بېګاه ګرځي در په در

چه به نه کانډ خبیث — نور به څه کانډ خبیث

ښځي طمع د ښومه کړه — کله ښه کانډ خبیث

چه د بل ښیګړه وېني — خان اوبه کانډ خبیث

که يې ښاي وکړي په زړه کښ — خوږ د زړه کانډ خبیث

که ښا په حوله ښي خداي د — زر پانده کانډ خبیث

چه جهان ورځني خلاص شي — خداي د مره کانډ خبیث

د مېړني غُند خوشحال
الواته کانډ خبیث

[illegible] خراباتي يم له ما مه غواړه صلاح — څکي پيالي آخلم تر صباح وتر رواح

[illegible] خوبي به ستا د مخ په خيرکا — لمر مثال چراغ دي ستا چال لکه صباح

[illegible] مخ اله شدارد نه — سترګي چه دا کار دي په فتوي د عشق مباح

[illegible] ساقي په جام کښ — مي چه باده پاڅي په زجاج کښ ښه مصباح

[illegible] خوشحال راغي جنګ ته جوړ شه
[illegible] د مؤمن وضو سلاح

[illegible] مرګ د هر زمان سري لري په ياد

د همت ذخیره واسته د فردا دپاره
په اوبو چه روانه زي شونډي مه بدوه
که ژوندون دي هم هغه دي په جهان کښې
دا راحت لکه د فقر د بوريا دي

دا یو څو ورځي ژوندون دي غنیمت
په ورځ زر خونه کړه په شریعت
چه یادیږي د سړي د ښو خصلت
دا راحت نشته په تخت د سلطنت

چه جامه ئي پاتي نه شي مړه شوي نشته
خدای ورکړي و خوشحال هسي رحلت

ما چه نظر وکړ په ذرات د مخلوقات
یو قادر ترمیان دي نور پاتي شي له کار
هیڅ نبي ولي ئي درست اسرار موندلي نه دي
وزیږي له نوح د طوفان په موج فنا شي
کار د بل حاکم دي چه څه کاندي هسي کاندي
د خل د ساعت د طبیعت دي که د نورڅه
همه شي عالم چه فرشتو ته سبق ورکړي
رد دي که مقبول دي که معقول که نامعقول دي
سر په سجدي کیږدي وايي موږ کوم خوشحال

کول په جهان راعلم تر په کول خم هیهات
دا همه کیسي همه ادراک د سموات
لویه کارخانه ده که وګوري کائنات
زوي د آذر موږي له نار نه نجات
واړه سر درکړ دي دا آبا دا امهات
نیک زیږي له بد و له بدذاتو نه نیک ذات
بیا به خبر نه یې د جهان په ترهات
کوره نندارته کړه تر دا دم مه رهه زیات
زره ته نظر نه کړي په کښی خرلات و مات

بې کنکاشه به هیڅ کار په لاس وانه خلې — چه خبر دې د کنکاش په برکت

چه په تنه تواضع کښې سود حاصل دي — همه سود نشته د ډک طباخ د ست

که کنجونه د قارون در ته انبار شي — په هر لوري عوږزده په سخاوت

نادانان به یې پرېږدي ورستو و بل ته — عاقلان به ورانده بیاپي خپل دولت

نادانان که یې شدت وته طیار وي — لا یې نه دي خبردار په حقیقت

څو دوستي د دنیا ډېره دي په زړه کښې — هغه همه ډېر فساد دي قباحت

شور غوغا جنګ و جدل به ترمینځ نه وه — که هر څوک سره راضي وي په قسمت

که حاتم غوندې کرم کړي د مهرانو — د یوه د مړي په چا مه بده منّت

څو بدانو سره بد شي همه بنه دي — ولې عفو کرم ډېر لري لذّت

دا نابوده دنیا هیڅ متاع نه که — چه په کاندې عاقلان باندې شدّت

که دې سر څي که دې مال څي که دې ننگ څه — استوار اوسه په کار د رفاقت

په ظاهر باطن کفران د نعمت مه کړه — هواخواه اوسه د خپل ولي نعمت

که راحت غواړې په ځاي محنت قبول کړه — بې محنت هیڅوک نه مومي راحت

که وارو په خواست موندل شي مه یې اخله — که دې مرګ وته نزدې کاندې زحمت

که آسمان دې د زمرې په خوله کښې ورکړي — د زمرې په خوله کښې مه پرېږده همت

د طوطي ژبه استاذ غواړي د نطق
کنزه دي به لا بتر وه تر غراب

چه په مخ کښ د نابود شي واړه ستوري
د آسمان په ستوريو وځيږه آفتاب

که لبني ور باندې بلي کا ابري شي
د ژوندون هنر به نه شي له سيماب

له ياقوت د هاله سيالي سنبه کا
که د اور په تاو کښ دا نه شي بي آب

چه مرغونه وزر بيا موږي الوزي
هيڅ مقصود تر سره نه شي بي اسباب

په خوانۍ کښ به اوده وه په زوړ والي
د **خوشحال** سترګي بيداري شوي له خواب

درته وښيم کيميا د سعادت
د بدانو سره مه کوه صحبت

مه بدګوي مه بدآموز مه بداندېش شه
که د زره وي چه ورته رسي آفت

که لويې غواړي خان کم کنزه تر بل
بل تر دا د پاس نشته نصيحت

په دوستانو تا لطف کړه خو به تا شي
د دښمنو سره هم بنه کوه خلقت

د نيک خواه خبره آوره پر عمل کړه
تا نغوتانو ته طيار وي ندامت

د نمانځه تر قضا ګرانه دا قضا ده
چه قضا شي د خلورو مصلحت

نوراني کا هغه ځاي چه سره کښيني
ديرينه خلور هوښيار په مشورت

په اخلاص چه په دعا لاسونه هسک کا
در به پرانت شي د فتح د نصرت

که ته تړو کښېنې خوشحال | د فلک ترو څه پروا
اندېښنو ته زړه ورمه کړه | څو حیات یې په دنیا
که تل خوش اوسې تل خاندې | یې اسم یا مسمّا
نږ هغه نادان څوک نشته | چه نن غم خوري د صبا
غم غیرة په یوه لور کړه | خاطر صاف شه له هرچا
د فردا اندده نن مه کړه | کوره څه دښي فردا
واړه وسپاره وخدای ته | که دوستان دي که اعدا
که لقمان شي په حکمت کښ | یا که بوعلي سینا
ته په لار د مرګي بندکړي | نه په خلاص شي له قضا
د قضا سره جنګ نه شي | د قضا وروړه رضا

که رضا و قضا ورکړي
نور **خوشحال** یې په رښتیا

ته چه هسې په غوغا درومي سیلاب | ولې هسې په ساعت کښ شي بې آب
آفرین دې په همت د لوی دریاب شي | چه په هیڅري یې چار نه ده کریاب
چه په پورته د کاغذ وکوډې درمې | که رښتیا ده دا دې دروېي بې طناب

| | |
|---|---|
| نه به پاتو عشق د څوان شي | نه بنه حسن د خوبا |
| ګاه د زوي لور په غم شي | ګاه د یار و د آشنا |
| چه به پس له ما دا څه کا | حال به څه شي د هرچا |
| ولي هسي فکر نه کړي | چه په دا څه دي څما |
| بخري اوس نه دي اول دي | چه نه ارض وه نه سما |
| خپل قسمت به هرڅوک مومي | که افلاس وي که غنا |
| څه اندوه د بوه نفس کړي | اي د نفس په غم شیدا |
| خو د نفس څله دي ومري | که کشکاب وي که حلوا |
| غرض تن دي تن دي پټ وي | که خاصه وي که خامتا |
| که د نفس په نغوته دروځي | تا به زر کا ندي رسوا |
| نفس په دا راغلي نه دي | چه روا یا ناروا |
| چه ارواح پیر خوبني مومي | هغه چار ګنړه اعلا |
| مټ په علم کړه چه علم | اژدها دي هم عصا |
| یا په علم کښ لذت دي | یا په عشق کښ د مولا |
| نور همه چار عبث دي | که اعلی دي که ادنا |

چه په سترګو باندېني بردی | باري ورو برده څخو پا
د بهار ګلونه بنه دي | که يې تل دد لي يقا
زمکه سبزه زرغونه شي | د حمل په ابتدا
زنګارنګ ګلونه وا شي | هم په باغ هم په صحرا
نه يو ګل د بل په رنګ وي | نه يې بوي سره همتا
يو څو ورځي شګفته شي | زر فنا شي په جوزا
تر بلبل نادان څوک دي | يا کم‌عقل تر بورا
چه په هسي څيز يې مينه | چه يې څو ورځي بقا
هغه څيز چه بي وفا وي | دره پر نه تړي دانا
په جهان کښ مينه هم وه | د يوسف د زليخا
که ويسه وه که رامين وه | که مجنون وه که ليلا
که فرهاد وه که شيرين وه | که وامق وه که عذرا
اوس يې نخښي ليدي نه شي | دي جهان کړل ټول فنا
نه به ګل د چمن پريږدي | نه بلبل و نه طوطا
نه به طفل څخي خلاص شي | نه سپين‌ږيري نه برنا

| | |
|---|---|
| یو چه خلاص يي له حسابَ | بل به نه يي مبتلا |
| په شوکت لکه شهباز شَه | په همت لکه عنقا |
| لکه چغد هسي مه شَه | نه ئې رنګ نه ئې معنیٰ |
| خوره خوروه له خپلو لیچو | غضنفر شَه نه رویا |
| سخاوت کړه څو په تا شي | اسراف نشته د سخا |
| په سرتوري پرِ ناري کړه | چه تالا دنیا تالا |
| چه ئې قطع عوایق کړل | په آسمان کښیناست عیسیٰ |
| د عسل په دود شیرین شَه | نه حنظل نه ګندنا |
| مه لړم شَه مه افعي شَه | غم فزا راحت زدا |
| یار د نورو په ګردن کړه | خپل یار مه کښیږده په چا |
| جهان ځاي د مکافات دي | بد به مومي چه بد کا |
| د بدیٔ جزا بدي دَه | د نیکیٔ نیکي سزا |
| چه په کیږدي توري خاوري | نار په نار واره اعضا |
| دا څه توري خاوري نه دي | چه پرِ څي صبا بیګا |
| همګي جونه زلمي دي | خاوري شوي د پیدا |

په شداد ئې فساد کړي ... په قارون ئې وکړ لا
نه ته پلار يې د زهمنو ... نه زهمن دي زوي ستا
نجيل خان د هرچا کار دي ... که پسر دي که بابا
حلق په خپلو لاړو لوند دي ... د گدا هم د بادشاه
ته د خان يې زه د خان يم ... ته جدا يې زه جدا
غم بنادي د هغو بخره ... چه لري ژړا خندا
که حشم دي بې شمار ... خزانې دي بې احصا
چه اجل در لره راشي ... نه هغه پکار نه دا
که هسې رنګ کار دي ... راشه واوره اې فتا
مهيا و مرګ ته کښېنه ... سرانجام کړه د عقبا
که دې توان وشي تقوي کړه ... که تقوي نه وي فتوي
بهشت ځاي د نورچانه دي ... خداي ياد کړي اتقيا
که نجيله پارسا نه يي ... خاکپاي شه د پارسا
هر چه شته شريک له وارو ... مشترک دي هدايا
که غني يي سخاوت کړه ... که فقير يې سخ دي لا

# انتخاب

## د دیوان د خوشحال خان خټک

اي چه خیال کړې په دنیا — دنیا څه ده بې وفا

که دې یو زمان زړه ښه کا — بیا دې زړ کا په ژړا

راحت نشته په دنیا کښ — اَلدُّنیَا دَارُ البَلَا

دنیا مه گڼه څه نور څه — دا ده ځاي د اِستنجا

زه چه تا گورم حیران شم — اي ابله مشت کمیا

هر زمان نوي خیالونه — هر ساعت نوي هوا

یو دې زړه زر دې یارئ دې — یو دې سر سِل دې سودا

کله مست شي د مال و ملک شي — کله مست شي د صهبا

د مسند د پاسَ کښیني — لور په لور دې مُتَّکا

تبسم مې دې وکړي په روزګار شي
چه له مرګ ئې نه وېره نه ئې دار شي

له ده وږېږي د ده د وړاندې ومړي
لا ئې مينه د دنيا په کار وبار شي

که ئې هر قدم د مړيو په سر لاړ دي
يو قدم هسي وا نه خلي چه په لار شي

د ژونديو نصيحت پرې اثر نه کا
مګر مړه له تبره پاڅي په ګفتار شي

د امېد مزي ئې هسي رنګ درازوي
چه تر خضر ور ته خپل عمر بسيار شي

سپينه ږيره په اوږي کښي زوي واخلي
چه به ما لره سپاهي و منصبدار شي

د خرما زړي نهال کا ور ته ګوري
چه دا سوري دا ميوه به مې پکار شي

هر هر فصل چه تېرېږي هوسيږي
چه به ګانده راته بل فصل طيار شي

لا ئې ليه تخم هم نه وي کولي
ناکشته ورځني طمع د خروار شي

غروندي د نازکيو خسبو غوړي
چه صبا بيګاه به ما لره ګوهار شي

لکه ورکي کتوري له زانړي غواړي
په دا هسي پوچ ګوئې لي اعتبار شي

**رحمان** خه دي چه به پند وچا ته وايي
هدايت د هر بنده په کردګار شي

ورد نه شي په پردي زړکه هیڅوک
کوږ و کږ و بصیر دري واړه یو دي

چه دنه په کښ یو یار نه د آشنا وي
هغه ښهر بحر و بر دري واړه یو دي

په دکان د نابیناو جوهریانو
خرمهري لعل و گوهر دري واړه یو دي

پسران د عار څما له عشق نه کا
پاک عاشق پسر پدر دري واړه یو دي

په سبب د ظالمانو حاکمانو
کوږ و اوږ و پیښاور دري واړه یو دي

غزا و شوه که خان سنائي و رحمان ته
بې هنر و گاؤ و خر دري واړه یو دي

هغه یار چه بې وفا دي څه یار نه دي
هغه کار چه بې بقا دي څه کار نه دي

که د سربندل دشوار په ما و تا دي
دا په عشق کښ سهل کار دي دشوار نه دي

اندیښنه سري بیدار کاندي له خوبه
کم اندیښ که بیدار دي بیدار نه دي

که څه عمر دي عاشق له وصال دي
د هجران عمر د عمر په شمار نه دي

د چشمانو په څنبل کښ تیر و بیر شي
اعتبار د زماني اعتبار نه دي

که د سلو زویو پلار شي به ئې څه کا
بې وقوف زوي د پلار څه پکار نه دي

معشوقي همیشه ناز په عاشق کاندي
رحمان هیڅ له خپل یاره آزار نه دي

بې ربیاره رسیده و یار نه ګران دي
په کوڅه د مهرویانو رهبر بویه

بې هنره چا دولت موندلي نه دي
په خدمت د صاحبانو هنر بویه

ستا له سترګو م هرګوره ملاحظه شي
له دي هسي سیاه دلانو حذر بویه

بنه چه سترګي خداي ملالي کړي د ترکو
لږ په ذره د ظالمانو اثر بویه

ستا په داغ به هر یو ذره مشرف نه شي
دغه تاج د بزرګانو په سر بویه

چه خبر د **رحمان** نه آخلي یار بد کا
بادشاهان له ګدایانو خبر بویه

---

مخ د یار شمس و قمر دري واړه یو دي
قد و سرو صنوبر دري واړه یو دي

حاجت نه لرم په شهد و په شکرو
لب د یار شهد و شکر دري واړه یو دي

که بې یاره په بستر د پاس پروت یم
نار و خاوري وا بستر دري واړه یو دي

چه یې در و هم دیوار وته نظر کړم
باغ بوستان و دغه در دري واړه یو دي

خداي د یار له هجره هیڅوک خبر مه کړه
تاخت و قتل وا خبر دري واړه یو دي

چه غبار یې د کوڅي وا باندي واشي
وا غبار مشک و عنبر دري واړه یو دي

هغه دم چه سړي درومي له جهانه
توري خاوري سیم و زر دري واړه یو دي

قلندر چه په ریښتیا قلندري کا
خان و سلطان و قلندر دري واړه یو دي

شیخ م نه کړه په دا عمر کښ حاصل
هسي پاتي شوم مردود و ناقابل

ما لا بوي هم د وصال مندلي نه دي
تش په توره م حنداي نوم کړ دواصل

هسي ډوب يم د ګناه په درياب کښ
چه په سترګو م و نه ليده ساحل

له وطن م په هر زمان وباسي
رقيبان ئي را پسي کړه حاصل

که بلا دَه که جفا دَه که وفا دَه
دا همه دايره پر ما کړه خداي نازل

د دنيا په پايښتي م ښات پليت کړ
حيف دي دا چه نه عالم شوم نه جاهل

توره ښيره م شوه سپينه زه حيران يم
چه **رحمان** لا نه بالغ شوم نه عاقل

که م ښوک په فقيري شميري فقير يم
که م ښوک په اميري شميري امير يم

د دلبرو صدقي لره ئي غوارم
هسي نه چه په دنيا پسي زهير يم

د خرقي خدمت مشکل دي اوکه نه وي
زه هر دم و دغه چاري ته حير يم

هم پند آخلم هم پند وايم هر چا ته
زه د ښينو م مريد د ښينو پير يم

په هجران کښ خيال د يار راسره مل دي
په زندان کښ د يوسف سره اسير يم

په خندا کښ م ژړا دَه لکه شمع
لر عالم پټ پنهم د ښان په وير يم

آزادي تر دا په هورته يله نشته
چه بندي د يار د زلفو په زنځير يم

چه مړشي

مور و پلار خو بیا فرزند له خدای غواړي — چه بدبخت شي ادي څه کا بابا څه کا

یار له یار په لوي لاس کله بیلیږي — چه لاس نه رسي یار څه کا آشنا څه کا

په بنیرو په دعا څه شي کړوني خدای دي — چه خدای نه کا بنیری څه کا دعا څه کا

بخت په زور و په زر نه دي چا چپل کړي — په دا کار کښ ناتوان څه کا توانا څه کا

اي رحمانه پتنګ عذر شته چه وسه
نور د شمع خندا څه کا ژړا څه کا

چه په سترګو کښ یې خاوري څه به خوب کا — چه په زړه یې غم د یار وي څه به خوب کا

خوب له یار سره هم د عاشق نه شي — چه یې یار په بل د یار وي څه به خوب کا

په دنیا کښ خوب هغه کا چه نادان وي — هغه روي چه هوښیار وي څه به خوب کا

کوم طالب مطلوب موندلی دي په خوب کښ — هغه څوک چه طلبکار وي څه به خوب کا

دیدار نه دي چا په پټو سترګو کړي — چه مطلب د چا دیدار وي څه به خوب کا

بله لار د مرګ له لاري ګرانه نشته — چه په خوا یې هسي لار وي څه به خوب کا

هر نګاه د دلبرانو ذوالفقار دي — هر چه غوڅ په ذوالفقار وي څه به خوب کا

زه رحمان د یار بنده و خدمتګار یم
چه بنده و خدمتګار وي څه به خوب کا

آردیدنکي يې رحمان د ويل نه يم
بهنز دا دي چه نور نه داني واعظ

په تندي چه آتش بل کړ مدام شمع ښکله بیاموندہ له خلقو آرام شمع
په انوار يې منوّر اهل ابصار شو لا يې کله شي بنکاره د انعام شمع
پتنګان يې لور په لور تو مخ خڅرخیږي ښکله نه کړي په سول کښ آرام شمع
وسیزه نه ځان ځما په شعله باندِ کړ پتنګ ته په رموز کښ کلام شمع

ستا مجلس د خاص الخاصو سرفرازو
د رحمان په خير نه موږي هر عام شمع

هر یو ګل د ستا د باغ روښن تر دي ترچراغ روښن تر دي ترچراغ هر یو ګل د ستا د باغ
ستا د باغ و د بټر زاغ په نظر ځما هاي دي په نظر ځما هاي دي ستا د باغ و د بټر زاغ
د دردمندو په دماغ ستا د درخاوري عنبر دي ستا د درخاوري عنبر دی د دردمندو په دماغ
د عاشق د تبتر داغ په آسمان دعشق آفتاب دي په آسمان دعشق آفتاب دی د عاشق د تبتر داغ

د رحمان د زړه فراغ نه شي نه شي بي خوبانو
نه شي نه شي بي خوبانو د رحمان د زړه فراغ

ورځ چه بده شي عاقل او دانا څه کا چه تعنا شي ور دو ځاد حکما څه کا

مور و پلار خو نیک فرزند له خدایه غواړي ‌ ‌ ‌ چه بدبخت شي ادي څه کا بابا څه کا

یار له یار په لوي لاس کله بېلیږي ‌ ‌ ‌ چه لاس نه رسي یار څه کا آشنا څه کا

په بنیرو په دعا څه شي کړوني خدای دي ‌ ‌ ‌ چه خدای نه کا بنیري څه کا دعا څه کا

بخت په زور و په زر نه دي چا خپل کړي ‌ ‌ ‌ په دا کار کښ ناتوان څه کا توانا څه کا

اي رحمانه پتنګ عذر شته چه وسه
نور د شمع خدا څه کا ژړا څه کا

چه په سترګو کښ يې خاروي څه به خوب کا ‌ ‌ ‌ چه په زړه يې غم د یار وي څه به خوب کا

خوب له یار سره هم د عاشق نه شي ‌ ‌ ‌ چه يې یاد په بل د یار وي څه به خوب کا

په دنیا کښ خوب هغه کا چه نادان وي ‌ ‌ ‌ هغه روي چه هوښیار وي څه به خوب کا

کوم طالب مطلوب موندلی دي په خوب کښ ‌ ‌ ‌ هغه څوک چه طلبکار وي څه به خوب کا

دیدار نه دي چا په پټو سترګو کړي ‌ ‌ ‌ چه مطلب د چا دیدار وي څه به خوب کا

بله لار د مرګ له لاري ګرانه نشته ‌ ‌ ‌ چه په خوا يې هسي لار وي څه به خوب کا

هر ګاه د دلبرانو ذوالفقار دي ‌ ‌ ‌ هر چه غوځ په ذوالفقار وي څه به خوب کا

زه رحمان د یار بنده و خدمتګار یم
چه بنده و خدمتګار وي څه به خوب کا

آورید دنکي یُ رحمان د دیل نه یم
بهتر دا دي چه نور نه وایي واعظ

په تندري چه آتش بل کړ مدام شمع
څکه بیاموندہ له خلقو آرام شمع

په انوار یُ منوّر اهل ابصار شو
لا یه کله ژئي ښکاره د انعام شمع

پتنکان یُ لور په لور تر مخ څرخيږي
څکه نه کوي په سول کښ آرام شمع

وسیزه ته څان څما په شعله باندِ
کړ پتنګ ته په رموز کښ کلام شمع

ستا مجلس د خاص الخاصو سرفرازو
د رحمان په خیر نه موږي هر عام شمع

هر یو گل د ستا د باغ روشن تر دي ترچراغ
روشن تر دي ترچراغ هر یو گل د ستا د باغ

ستا د باغ و د بنر زاغ په نظر څما هاي دي
په نظر څما هاي دي ستا د باغ و د بنر زاغ

د دردمند و په دماغ ستا د درخاوري عنبر دي
ستا د درخاوري عنبر دی د دردمند و په دماغ

د عاشق د تیتر داغ په آسمان دعشق آفتاب دي
په آسمان دعشق آفتاب دی د عاشق د تیتر داغ

د رحمان د زړه فراغ نه ژئي نه ژئي بې خوبانو
نه ژئي نه ژئي بې خوبانو د رحمان د زړه فراغ

درخ چه یده ژئي عاقل او دانا څه کړ
چه تمنا ژئي ور ددخاد حکما څه کړ

طمع مه کړه په دنیا کښې د نشاط
بیا به نه مومې نشاط په دا بساط

لکه راغلي بیا به هسې ځني درومي
دا جهان د رهروانو دي رباط

نږ هر گام لاندې کوهي دي ددې دهر
ایښې لوبه هر قدم په احتیاط

و دانا ته په دا جهان ښکاریږي
هم جنت وهم دوزخ و هم صراط

په عاشق به هیڅ دښمن د رقیب نه وي
که یې نه کړي له خوبانو اختلاط

له کمذات بې دیانت بې نمازه
طمع مه کړه د نیکئ د یو قیراط

غم د ترکو تر رحمان هسې چاپیر شه
لکه وسکنړي جامه په چا خیاط

اومه کله دي پاخه وایي واعظ
هر چه وایي واره یسه وایي واعظ

دي چه ماله خپل یار لري باسي
نور به څه را ته اومه وایي واعظ

جا رواته ښکاله یار ډیر مشکل دي
زیاتې څه له دوباره وایي واعظ

په خوږو پستو خبرو یې غلط شوي
دا خواږه خواږه ترخه وایي واعظ

څوک به څه باور د ده په نصیحت کا
چه له یار جارواته وایي واعظ

نه بي عشق بل یو کار کولي نه شم
ډیر له عشق تښتیده وایي واعظ

اعتبار یې په نرمئ په گرمئ مه کړه
دا توده توده ساړه وایي واعظ

نه یې مغز نه دانه وي په خرمن کښ
د مجاز له یارَ طمع د خیر مه کړه
ودانۍ یې همه واړه ویرانۍ دَه
که څما په ګفتګو کښ زیات وکم وي
ساقي جام د باده راوړه چه بیخود شم
که څوک وغواړي تمامه دنیا واړه

عبث هسي خالي لوني په سر بوس
تمامي شرّ و شدّت دي دَ الوس
راشه وګوره مانړیٔ د دقیانوس
څوک دِ ګړ کا په دا ښهر کښ جاسوس
خدای څوک مه کړه په خودیٔ کښ محبوس
څما یار څنګ به نه وي بل عروس

رحمان حسن دیار وینم په پرده کښ
نه پټیږي نور د شمع په فانوس

که ته نه کړي په بل چا باندِ غرض
که ګدا د بل په غوږي غرض نه کړي
په ساحل کشتیٔ د هیچا نه دوبیږي
خلوتیان په چِل خوت کښ فراغت دي
دا دنیا په احمقانو دَه ودانه

بل به نه کانړ به تا باندِ غرض
سپي به نه کړ په ګدا باندِ غرض
که څوک نه کا په دنیا باندِ غرض
د رسوا دي په رسوا باندِ غرض
دانا نه کا په دنیا باندِ غرض

زه رحمان د عشق په درد کښ هسي خوښ یم
چه م نشته په دوا باند غرض

له خالقه د نه شرم نه حجاب وي
له رحمان کوبنه ونسي حجاب کر

که بې شاي زرکي نه وکبني آواز
نه صياد څني خبر وي نه شهباز

ننکه له دې خبري هسي معلوميږي
چه څپل صوت دي هر سړي لره غماز

د منصور و حال ته گوره حال يې څه شه
خداي دِ فاش د هيچا نه کاندِ پټ راز

دريغ دريغ که درستي عقل ورنبي وي
د انجام خبري نه شي په آغاز

نيک عمل د عالمانو نيک فرزند دي
خداي څوک مه کړه شراب خور و قمار باز

چه فرزند يې شراب خور و قمار باز شي
نور يې کانړي شي د پلار په خونه ساز

خداي له هسي ناهرزاده امان وکړه
چه بې دين بې ديانت شي بې نماز

چه منکر پر اعتراض کولي نه شي
دا دِ شعر دي رحمان که اعجاز

که څوک فخر کا په ننگ و په ناموس
دا په عشق کښ نه ارزيږي يو فلوس

که آغوستي يې زري جامې دي څه شو
کنړه يو مرغ زرين دي يا طاؤس

که يې تاج وي په سر ايښي غزا وشوه
په نظر ځما هدهد دي يا خروس

نه يې فهم فراست وي نه يې عقل
خالي نقش لکه عکس د معکوس

لکه وته مستغنیم په خپل مکان یم — که خزان را باندې راشي که بهار
توکل م لاس پښې سره کړه په نګریزو — چه په ځای بې کښېنولي یم قرار
چه ځما په باب کښې کښلي دي را رسي — که رحمت دي که زحمت دي وار په وار
چه هژده هزار قومونه ئې پیدا کړل — مربي مې دی هغه پروردګار
کار همه په اراده د خدای موقوف دي — هیڅ موقوف نه دي د چا په انتظار

غم به هیڅري د نه کا په دنیا کښې
که څه کیږي د **رحمان** په اختیار

په پیریږ کښې چه هوس د مي ناب کړي — بیهوده ګمان په صبح د مهتاب کړي
بې طاقتۀ عنایت له خدایه غواړي — د عتاب په ځای امید د ثواب کړي
دانسته ګناه کوي توبې وکاږي — لکه بت هسي په غتو سترګو خواب کړي
په هغو غوږو چه ذکر د خدای آوري — بیا سماع په هغو غوږو د رباب کړي
په هغو شونډو چه حمد و ثنا وايي — هم هغه شونډي بیا ډوبې په شراب کړي
علم وکړي هیڅ عمل ور باندې نه کړي — لکه طفل هسي لوبې په کتاب کړي
په شپه پروت یې د مغان په میخانه کښې — او د ورځې مخ په لوري د محراب کړي
تمام عمر د دنیا په طلب کړزي — بیا د خدای په طالبانو ځان حساب کړي

د دنیا مینه بې کاره آوریدې شي
چه م ولیده رښتیا څه پکار نه دَ

که رحمان په جهان ډیر پایم دلبرَ
زندګي څما بې تا څه پکار نه دَ

څه شو که خاموش یم ستا د عشق له آهِ سردَ
ستا څما له مینې خلقه واره خبر دَ

ښځوک دِ به خوله د عاشقۍ لاف ونه کا
که هم پټېږي وچي شونډي ګونه زردَ

اهل د دنیا واړه نامرد دي رنګ ئي ورک شه
خدای دِ ملاقات د هیچا نه کا له نامردَ

که بې دردانو لره زړه د چاور دردمي
زه به صدقه کړم سل بې درد نز اهلِ دردَ

بې دِ ستا د عشق د شهیدانو له خاک دانَ
که زرغونیږي سره لاله له هرَ ګردَ

یو خوشحال یو کیر سل خټک نور په طبیعت کښ
خار شه د رحمان سره یې له یوه فردَ

څوک دِ راکانهِ تسمم په کردګار
که درم لرم په کور کښ یا دینار

زه دینار و درم نه لرم په کور کښ
ولي نور عالم م بولي دنیا دار

هم په دا چه نه له ځایَ چیرته خوځم
نه د هیڅ یوه مخلوق یم منت بار

نه م ښکنه ملک لیدلي دي نه پورته
خبر نه یم په یمین و په یسار

آب و خور لکه ګیاه په ځایَ را رسي
په چل کور کښ م سکون دي هم رفتار

مکر دیو دي چه بي غم وي په هجران کښ — کنره نه به وي انسان دا هسي شوخ

دا نشئ او نسادونه به وو چري — که پیدا نه وي آسمان دا هسي شوخ

د اشنا له غمه زړه د آشنا نه چړي — آفریده کړ خدای جهان دا هسي شوخ

چه یوسف يې د دنیا په متاع ورکړ — پیدا مه شه بل کاروان دا هسي شوخ

چه بوسه له یاره غواړي بي ادب
خدای دِ نه کانډِ رحمان دا هسي شوخ

له اغیار سره خندا څه پکار نه دَه — له اغیار سره سودا څه پکار نه دَه

سل یارئ د یوه یار دپاره کیږي — آشنائي د هر اشنا څه پکار نه دَه

هر بلبل به دِ ثنا کا که نه ګل شي — په چپل ځان چپله ثنا څه پکار نه دَه

عشق د بوي په څیر په پټه خوله څرګندیږي — په دا چارو کښ غوغا څه پکار نه دَه

د عشق درد واړه عاشق لره راحت دي — د دي هسي رنځ دوا څه پکار نه دَه

بد له بدو سره بویه نیک له نیکو — د جفا په ځاي وفا څه پکار نه دَه

عاشقي حرص وهوا دِیا سره لري — د بیمار په ځان هوا څه پکار نه دَه

عاشقي یو نادر کار دي په جهان کښ — ولي بي خدایه سودا څه پکار نه دَه

که يې کرم هم ئي هیڅ په کنرم سرګندي — وابستګي د دي دنیا څه پکار نه دَه

ليونتوب له ليونو نه تلوني نه دي ‌ ‌ ‌ كه يې راج په خونه ورشي كه تاراج

كه يې سر لكه منصور غوندې په دار شي
دغه دار دي **رحمان** و ته معراج

په طلب د ماهرويانو سرګردان دي خما روح ‌ ‌ ‌ لكه باد د ګل په بوي پريشان دي خما روح

ستا د حسن و آفتاب ته چه سپارلي ځان شبنم دي ‌ ‌ ‌ لكه صبح د ژړا په ځاي خندان دي خما روح

چه م ستا د جمال عكس دي ليدلي په خپل ځان دي ‌ ‌ ‌ هم په دا د آئينې په څېر حيران دي خما روح

ستا دغه د آئينې له بركتَ خما جانَ ‌ ‌ ‌ هميشه لكه طوطي هسي ګويان دي خما روح

لكه رنګ د ميو نا بو چه ليده شي په شيشه كښ ‌ ‌ ‌ هسي رنګ په ضعيف تن كښ نمايان دي خما روح

منتظر يم د وصال و ګلستان ته تل تر تلَ ‌ ‌ ‌ سر تر پايَ د شبنم په څېر چشمان دي خما روح

چه حاصل م له حسنَ روښنائي شوه په طلب كښ ‌ ‌ ‌ شپه و ورځ لكه آفتاب په لار روان دي خما روح

ستا په زلفو په رخسار پسي **رحمان** شه بې وطن
مسافر د هندوستان و خراسان دي خما روح

چه پيدا شو ستا چشمان دا هسي شوخ ‌ ‌ ‌ لوز به نه وي مردمان دا هسي شوخ

كج زلفان كج ابروان لكه چه ستا دي ‌ ‌ ‌ نه لرم شته نه ماران دا هسي شوخ

د غمزه شوخ شوخ شته دي په جهان كښ ‌ ‌ ‌ ولي نه لكه هجران دا هسي شوخ

زه رحمان له هسي اهلٔ پناه غوارم
هرچه لاف کا په خلاف د مقامات

د وصال شپه م بدله په بیلتون شوه الغیاث
د قیامت خوارِي را پیښه په ژوندون شوه الغیاث

مالا طمع د وصال د نعمتونو تر کوله
ناګهان پیاله نسکوره دګردون شوه الغیاث

هغه چار چه م په لاس وه زه پرِنه دم پوهیدلي
اوس چه پوه شوم له اختیارم بیرون شوه الغیاث

دوصال په طمع طوق د جدائي شه را په غاړه
هغه طمع چه ځاوه اوس طاعون شوه الغیاث

په حکمت په عقل بیتي دعشق څرک آختی نه شي
په دا کارکښ ما ته ملا د افلاطون شوه الغیاث

ما رحمان د یار وصال په آسانئ موندلي نه دي
زردروئ م سرخروئ په جګرخون شوه الغیاث

چه برهم کا عاشقي د چا مزاج
حکیمان ئې درمانده شي په علاج

په آشنا پسي تل ژاړي په دوه سترګو
د اوبو په ځاي خوناب کاندِ اخراج

درازه لاس ئې وي له دوارو کونو ولي
ډوب وي تل د عاشقئ په امواج

په شغوکښ چه څه بوي د عاشقئ وي
په کښ نه وي بوي د رسم و د رواج

ابراهیم ادهم څه هسي نادان نه وه
چه نظر ئې یا په تخت وه یا په تاج

مجنون هسي رنګ مین په لیلي نه وه
چه په نورو ئې موقوف وه احتیاج

چه څېل یار د چا رقیب شي مثال دا دي لکه څوک چه په وطن کښ شي غریب

چه غریب شي په وطن کښ فرق ئې نه دي که فرسنګ ئې وي تر میان که جریب

ما په عشق کښ هیڅ حاصل نه کړه بي غمه هر چه وائي وایه بنه وایي ادیب

دشمن هم د سړي کله کله دوست شي
دوستي نه کا د **رحمان** سره حبیب

که م وشي له دلبر ملاقات یا په نه خم له دي در په حیات

پس له دي م د استرګو نه خداي نصیب کا په دا در کښ که حیات وي که ممات

بناڼي دا که زه څېل یار ونه سجده کړم هغه یار څما قبله دي د حاجات

د څېل یار تر لعلو لبو به ئې څار کړم که شکري وي که قند وي که نبات

دا څما د یار جلوه ده چه لیده شي لکه ثمر په صومعه د سومنات

تر ما لا په دلبرانو ډیر میین دي چه خبر کړي د کشف و کرامات

د ریا له زاهدیه څما توبه ده چه ئې کاندي څوک په رسم و په عادات

په ورځ پند و نصیحت وایي ویل ته په شپه ناست وي د مغان په خرابات

دین ئې دام وي د دنیا په لار کښ ایښي پر را آري وحشیان د مخلوقات

د هغو په لور ئې سترګې وي ختلي چه په لاس ئې سرمایه وي یا زکوت

عبادت کا په ځان فرض    د بادشاه د امرا
حق باطل کا باطل حق کا    په سبب د روي ریا
نه ئې ډېره وي له خدایه    نه ئې شرم نه حیا
د بي کېږي د پاره    هزار خونې کا بیدیا
همیشه ئې له ستمه    واړه خلق وي په غوغا
ګوش و هوش ئې هرګز نه وي    د مظلومو په ژړا
د فرعون په څېر به ناست وي    بي پروا و کبریا
بت خانې وته ئې مخ وي    و مسجد وته ئې شا
اختلاط کا له بدانو    له نیکانو وي سوا
هیڅ ئې نه وي په خاطر کښې    تولا و تبرا

و رحمان ته پښېنه مه کړي
خدایه هسې رنګ نبلا

چه نظر کرم په قسمت او په نصیب    را نه هیڅ شي ځنې تلاش د ځنې ترتیب
مګر خود پخپله خدای د چا طبیب شي    ګنړه نشته په جهان کښې بل طبیب
را څرګند دي سود و زیان د رقیبانو    که خدای نه کاندي ځنې یار د چا رقیب

فتوي ولسه په مخ کښي — لېسي مت کړه په تقوا

دنیا نه کړه واړه دین دي — چه له نهي وي سوا

وطاعت و ته ولاړ وي — همیشه نږلي ملا

له حرامو ئې پرهیزوي — مشغول وي په پنځ بنا

کلمه ئې وي قبوله — هم په جهر په اخفا

د دنیا د کار د پاره — فرض نمونځ کاندي قضا

هم صائم د رمضان وي — هم زکوٰة کاندي ادا

که ئې توان د حج رسیږي — حج هم وکړي پسی بیا

دا پنځه بنا د دین دي — چه بیان ئې وکړ ما

چه ئې یون په دا طریق وي — هغه کس دي اولیا

که ئې مال د دنیا ډېر وي — هیڅ دِ نه کاندي پروا

دنیا بده د هغو ده — چه ئې کسب وي ریا

یا ئې ټوله کا په ظلم — یا د خمرو په سودا

یا ئې ورکا په شرابو — یا ئې ورکا په زنا

یا ناحق خونونه کاندي — یا مالونه خوري د چا

دنیا کښت د آخرت دي | دا خبره ده رښتیا
د دنیا طالبان ډېر دي | که یې مومي څوک له چا
ولي مرد په کښې هغه دي | چه سخي وي هم پارسا
په دنیا کښې بدي نشته | که بدي نه وي له تا
دنیا بحر دي بهېدري | آئینه غندې صفا
خپل خپل مخ په کښې لیده شي | که څوک زشت وي که زیبا
هم خطر په کښې د سر شته | هم گوهر دي بې بها
وفادار لره وفا شوه | جفاکار لره جفا
له یوه مخ یې درد وي | له بل مخ یې دوا
چرته خوند کاندي د زهرو | چرته خوند کا د حلوا
کار همه واړه موقوف دي | د سړي په مدعا
سالکان دي نندارچي شي | د خپل خان په تماشا
هر چه کا هغه به مومي | دنیا ځاي دي د جزا
نکه دي شي به پاڅي | که نادان وي که دانا
که دانا یې وپوهېږه | په روا په ناروا

| | |
|---|---|
| فتوي ولسه په مخ کښ | لېسي منت کړه په تقوا |
| دنيا نه کړه واړه دين دي | چه له نهي دي سوا |
| وطاعت وته ولاړ وي | هميشه تړلي ملا |
| له حرامو ئي پرهيزوي | مشغول وي په پنځ بنا |
| کلمه ئي دي قبوله | هم په جهر په اخفا |
| د دنيا د کار د پاره | فرض لمونځ کاندي قضا |
| هم صائم د رمضان وي | هم زکوٰة کاندي ادا |
| که ئي توان د حج رسيږي | حج هم وکړي پسی بيا |
| دا پېنځه بنا د دين دي | چه بيان ئي وکړ ما |
| چه ئي يون په دا طريق وي | هغه کس دي اوليا |
| که ئي مال د دنيا ډېر وي | هيڅ دي نه کاندي پروا |
| دنيا بده د هغو ده | چه ئي کسب وي ريا |
| يا ئي لوټه کا په ظلم | يا د خمرو په سودا |
| يا ئي ور کا په شرابو | يا ئي ور کا په زنا |
| يا ناحق خونونه کاندا | يا مالونه خوري د چا |

دنیا کښت د آخرت دي — دا خبره دَه رښتیا
د دنیا طالبان پیر دِي — که یُې مومي څوک له چا
ولي مرد په کښ هغه دي — چه سپني وِي هم پارسا
په دنیا کښ بدِي نشته — که بدِي نه وِي له تا
دنیا بحر دي بهیرِي — آئینه غُندِ صفا
چِل چِل مخ په کښ لیده شي — که څوک زشت دِي که زیبا
هم خطر په کښ دسر شته — هم گوهر دي بي بها
وفادار لره وفا شره — جفاکار لره جفا
له یوه مخَ یُې درد دِي — له بل مخَ یُې دوا
چرته خوند کا دِ د زهرو — چرته خوند کا د حلوا
کار همه واړه موقوف دي — د سړي په مدّعا
سالکان دِ ننداري شي — د چِل خان په تماشا
هرچه کا هغه به مومي — دنیا ځاي دي د جزا
لکه دي هسي به پاڅي — که نادان وِي که دانا
که دانا یي وپوهیږه — په روا په ناروا

فوئ

په رحمان باندې دا عمر هسې تېر شه
لکه تېر شي يو ساعت په دا دنيا

| | |
|---|---|
| سبه دَه ښه دَه دا دنيا | چه توښه دَه د عقبا |
| مذمت د دنيا مه کړه | واوره پند کړه دا دنيا |
| د دنيا په بازار کېږي | د هغه جهان سودا |
| په دنيا کښ ډېر حکمت دي | پرې پوهيږي حُکَمَا |
| که نر سر يئ صدقه کړي | رفع دفع کړي بلا |
| که غلیم لره يئ ورکړي | غلیم دوست کا په هوا |
| که په اور باندې ئې کېږدي | بوي د عودو کړي پيدا |
| که ئې توي کړي په صحرا کښ | ښائسته کاندې صحرا |
| که ئې نذر کړي د پيرته | خوشحال دروي په خندا |
| خو ژوندي دي په دنيا کښ | يادوي دې په دُعا |
| د حاتم په خير دې ستايئ | خطاب درکړي د سخا |
| سخي هر يو دوست دخداي دي | وَ لَوْ كَانَ فَاسِقًا |
| هر بخيل د خداي دښمن دي | وَ لَوْ كَانَ زَاهِدًا |

| | |
|---|---|
| په قيامت به په توبه ځيله نه شي | ماليدلي دي قيامت په دا دنيا |
| امانت به د لحد په ميان کښې پروت وي | هر چه اوبي امانت په دا دنيا |
| نيک عمل حضور جنت دي طاعت بويه | چه حاصل کا ښوک جنت په دا دنيا |
| نيک کردار هم نيک عمل هم نيک خوينه | هم جنت دي هم راحت په دا دنيا |
| ضدّيتْ د سړي عمر په عذاب کا | بيکار نه دي ضديت په دا دنيا |
| لاس په سر په سينه اېښي وهرچا ته | هم دغه دي شرافت په دا دنيا |
| که بلنده مرتبه د چا بکار وي | لوي مقام دي عدالت په دا دنيا |
| بل ارمان به له جهانه يودې نه شي | مګر مهر محبّت په دا دنيا |
| د هغه جهان سودا واړه دلي دَه | که ښوک کا ندي تجارت په دا دنيا |
| که طالع د سړي نه وي جاروتلي | هيڅ پېت نه دي حقيقت په دا دنيا |
| نيک له نيکو سره بويه بد له بدو | که ښوک غواړي ولايت په دا دنيا |
| ولايت دي خداي هغو لره ورکړي | چه ئې ورک کړ سکونت په دا دنيا |
| که تمامه دنيا واړه سره يو شي | نور به نه کا چټل قسمت په دا دنيا |
| که ښوک مرد دي خو هغه دي په دنيا کښې | هر چه نه لري حاجت په دا دنيا |
| چه رغبت ئې د جمله حظاؤ سر دي | ښوک به څه کا ندي رغبت په دا دنيا |

په رحمان یانږ دا عمر هسي تیر سشه
لکه تیر شي یو ساعت په دا دنیا

سنه دَه بته دَه دا دنیا
چه توبنه دَه د عقبا

مذمت د دنیا مه کړ
واوره پند کړه دا دنیا

د دنیا په بازار کیږي
د هغه جهان سودا

په دنیا کښ ډیر حکمت دي
پر پوهیږي حُکَمَا

که تر سر يې صدقه کړي
رفع دفع کړي بلا

که غلیم لره يې ورکړي
غلیم دوست کا په هوا

که په اور باندِ يې کیږدي
بوي د عودو کړي پیدا

که يې توي کړي په صحراکښ
بنا یُسته کانږ صحرا

که يې نذر کړي د پیرته
خوشحال ددوي په خندا

څو ژوندي وي په دنیاکښ
بادوي دِ په دُعا

د حاتم په خیر دِ ستايي
خطاب ورکړي د سخا

سخي هر يو دوست دخداي دي
وَلَوْ كَانَ فَاسِقًا

هر بخیل د خداي دښمن دي
وَلَوْ كَانَ زَاهِدًا

په قيامت به بنه توښه ځيله نه شي — ما ليدلي دي قيامت په دا دنيا

امانت به د لحد په ميان کښ پروت وي — هر چه اوبي امانت په دا دنيا

نيک عمل حضور جنت دي طاعت بويه — چه حاصل کا ښوک جنت په دا دنيا

نيک کردار هم نيک عمل هم نيک خوينه — هم جنت دي هم راحت په دا دنيا

ضلالت د سړي عمر په عذاب کا — بيکار نه دي ضديت په دا دنيا

لاس په سر په سينه اېښي وهرچا ته — هم دغه دي شرافت په دا دنيا

که بلنده مرتبه د چا بکار وي — لوي مقام دي عدالت په دا دنيا

بل ارمان به له جهانه يوړ نه شي — مګر مهر محبّت په دا دنيا

د هغه جهان سودا واړه دلي ده — که ښوک کاندي تجارت په دا دنيا

که طالع د سړي نه وي جاروتلي — هيڅ پټ نه دي حقيقت په دا دنيا

نيک له نيکو سره بويه بد له بدو — که ښوک غواړي ولايت په دا دنيا

ولايت دي خداي هغو لره ورکړي — چه يي وړک کړ سکونت په دا دنيا

که تمامه دنيا واړه سره يو شي — نزد به نه کا چېل قسمت په دا دنيا

که ښوک مرد دي خو هغه دي په دنيا کښ — هر چه نه لري حاجت په دا دنيا

چه رغبت يي د جمله حظاوو سر دي — ښوک به څه کاندي رغبت په دا دنيا

په رحمان

بې له خدایه هر چه دي واړه فاني دي | که لذت دی که زینت په دا دنیا

که پادشاه وي آخر خاورو له به درومي | څه عزت دی څه حرمت په دا دنیا

له هغه به زیات نادان په جهان نه وي | هر چه غواړي فراغت په دا دنیا

نه چه څو زړه فرصت په دنیا غواړي | چا موندلی دی فرصت په دا دنیا

عمارت په سر د ریګ روان کاندې | هر چه کاندې عمارت په دا دنیا

د مستانو تر لغزش څه کم نه دي | د سړي استقامت په دا دنیا

هر ژوندي چه د مرده په تابو ورشي | بس دي همره نصیحت په دا دنیا

په روانو اوبو ورسته عمر ګوره | ډیر دي همره اشارت په دا دنیا

دا پاخه پاخه سرایونه محلونه | خو به وران شي عاقبت په دا دنیا

وړي سترګي د آسمان څه هسي نه دي | چه څوک پریږدي سلامت په دا دنیا

هر چه راشي همه واړه ځني درومي | مسافر دي هر صورت په دا دنیا

ریاضت په قیامت نه شي مرد هغه دي | چه یې وکړ ریاضت په دا دنیا

هم په دا خوي وخصلت به صبا پاڅي | خدای څوک مه کړه بد خصلت په دا دنیا

هم هغه به یې خرمن وړي پس له مرګه | هر چه کاندې زراعت په دا دنیا

که هغه جهان په دا کښې لیدی نه شي | زه یې وینم علامت په دا دنیا

پاس به داغ ږي د لئيم په تېر باندې — هر درم و هر دينار د دي دنيا
د قانع تر قناعت صدقه شه — هم دنيا هم دنيادار د دي دنيا
پس له مرګ به هغه واړه مظلوم ږي — ظالمان و ستمکار د دي دنيا
تر قيامت دغه لس او دغه شل ږي — پوره نه کړ هيچا شمار د دي دنيا
چه ايام پر د کفن د غسل ور ښي — بې پردي ښي پرده‌دار د دي دنيا
په تخته باندې بيرون ښي له حجاب — شرمناک او شرمسار د دي دنيا
له هر چا په پيغمبر نخه ده ډيره — که څه قرب دي يا وقار د دي دنيا

بې فساد به ئې بيان په **رحمان** نه ښي
فسادونه دي بسيار د دي دنيا

هغو بيامونه سعادت په دا دنيا — چه ئې وکړ قناعت په دا دنيا
نه ملکونه د سليمان په هزار کاله — نه بوه کړئ طاعت په دا دنيا
پر نفس د خداي په يادو اولي تر دي — نه د درست جهان دولت په دا دنيا
په دنيا کښ لوټ هغو عالمو وکړ — چه ئې ذکر عبادت په دا دنيا
که نعمت دي خو طاعت او عبادت دي — ګنړه نشته بل نعمت په دا دنيا
که محنت که مشقت دي خو دين دي — بکار نه دي بل محنت په دا دنيا

چه نظر د چا په دین و په ایمان ږي — هغه نه کا انتظار د دي دنیا

لوي هلک ئې همه واړه مکاران ږي — څه ویسا دَه په مکار د دي دنیا

آشنایان ئې همه واړه اعتباران ږي — یار دي چري په دیار د دي دنیا

چه پیدا شي همکي واړه فنا شي — راشه وګوره ناتار د دي دنیا

چه ویربیږي له کوږهي او له ګړنګ — هغه نه درومي په لار د دي دنیا

هر سړي لره چه ورشي خنی درومي — ما لیدلي دي رفتار د دی دنیا

په یوه ګړيځ بهار نوي بیا خزان شي — بقا نه لري بهار د دي دنیا

که نفراز هزار پښتيځ ور ته په کیږدي — بي بنیاد دي دیوار د دي دنیا

که د اوسپنو حصار تر خان چاپیر کړي — شیښه وګڼه حصار د دي دنیا

لکه سوري د آفتاب په مخ کښ ګرزي — نشته هیچري قرار د دي دنیا

هیڅ ګمان د بهتريځ ور یانډ مه کړه — کهتري دَه وار په وار د دي دنیا

بي مقراض غوڅيږي د سړي عمر — هم دا لیل و هم نهار د دي دنیا

پس له مرګ به حساب له سړي غوښت شي — په انداز و په مقدار د دي دنیا

عاقبت خو به یو موټي شي د خاورو — ګلعذار و ګل رخسار د دي دنیا

برابر به له ګداي سره پاڅي — شهزاده و شهریار د دي دنیا

واړه ډکي خولي د ببو هلکان دي
کاردیده وپخته کار د دي دنیا

همیشه به بې‌وقوف او بې‌شعور وي
چه مخمور وي په خمار د دي دنیا

د شرابو هم لا همره مستي نه وي
لکه مست وي خمرخوار د دي دنیا

هر بیمار لره دارُو په جهان شته دي
دارُو نه لري بیمار د دي دنیا

د هر سوي علاج وشي په جهان کښ
مګر سوي په شرار د دي دنیا

هرچه واچوي د اور ته واړه سوزي
موړ به نه شي طلبکار د دي دنیا

ګرفتار ئې همیشه په غم کښ ډوب وي
هیڅوک مه شه ګرفتار د دي دنیا

ټل به پروت وي په ظلمت وبه تورتم کښ
چه اسیر وي په کفّار د دي دنیا

په مسلمو کښ خاصه مسلم هغه دي
چه ئې وشلاوه زنار د دي دنیا

تن ئې پاتي شي بې‌سر سر ئې لاړ شي
سردار کله دي سردار د دي دنیا

زوئي لونړه یتیمان کا خني دروي
بې‌وفا دي مور و پلار د دي دنیا

همیشه به ئې یو پنډ د غم په سر وي
چه په سر ئې وي دستار د دي دنیا

واړه غم دي که ئې بیي که ئې پلوري
نورځه نشته په بازار د دي دنیا

ځکي واړه تېکان دي ټکي کاندِ
فروشنده وخریدار د دي دنیا

په دنیا به مینه نه کاندِ هیڅ‌ري
چه خبر وي په اضرار د دي دنیا

د مجنون صورت په زړه کړه رحمان گوره
سنا په عشق کښې هسې خوار و زار دي دا

هیڅ ثابته نه کړه چا د دي دنیا وفا
واړه مېنې کاندې بې وفا په دا دنیا

هرڅوک چه دعوې په دا دنیا کا د خپلوۍ
واړه باطل وایي دنیا نه ده د هیچا

دا فلک کلال دي سازول و ماتول کا
دبرۍ ما و تا غنډې پیدا کړه هم فنا

هر سنگ و کلوخ چه څرگند بریږي د دي دهر
واړه ګکړۍ دي څوک د شاه څوک د گدا

دام د هیڅوک نه بږدي د دنیا و رهگذر ته
ښکار به وکړي نه شي د سیمرغ و د عنقا

هرڅوک چه له دي فاني نفس وابستگي کا
نه به شي شړلي په زنځیر سره هوا

ماه دي که آفتاب دي عاقبت واړه خراب دي
گل که همیشه وي هسې نه تر ابدا

مه دروه رحمان په خلاف د دانایانو
مینه د دنیا پسندلي نه ده هیڅ دانا

هوښیار مه گڼه هوښیار د دي دنیا
بې وقوف دي وقوف دار د دي دنیا

روښنائي په هغو زړونو ده حرامه
چه پرکښیني گرد غبار د دي دنیا

پوچ گوئي ده چه ئې اهل د دنیا کا
هر کلام و هر گفتار د دي دنیا

د طفلانو په څیر واړه خاکبازي کړي
هرچه کاندي کاروبار د دي دنیا

د عمل په ځاي به دا پوښتنه نه وي — چه نه زوي یا نمسي یي د فـلانا

په ځپل ځان ښیګړه وکړه غره مه شه — په ښیګړه د آدي او د بـابا

هغه ناوې چه په ځان ښائسته نه وي — څوک ئي څه کړي ښائست د مور و نیا

دا خبره زه وځان ته کړم اي یـارَ — دلګیر مه شَه که م نوم واخست دِ ستا

نوم د ستا او د بل اخلم ځان ته وایم — نه م کار نه م غرض شته په بل چا

که م ځاي د دي غمونو وي په زړه کښ — ما به څه لره کوله دا ویـنــا

چه د مرګ سختۍ خوارۍ دِ به خوا وي
اي رحمانَ ولې نه مري لا پخوا

که څوک یار په جهان غاړي یار دي دا — یار دي دا که د جهان سنګار دي دا

خیال د زلفو ئې څما تر زړه چاپیر شه — یا نړګنځ چاپیر شوي مار دي دا

دا جهان دي خداي له عشقَ پیدا کړي — د جمله وُ مخلوقاتو پلار دي دا

تر عشق غوره بل څه کار په جهان نشته — تر همه کارونو غوره کار دي دا

بل بلبل به د ګل نوم آخستي نه وه — که خبر وي چه ګل نه دي خار دي دا

بیا راتله ودي جهان ته بل وار نشته — بل وار نشته بل وار نشته وار دي دا

د حباب عمر دِ وګوري چه څه دي — که څوک شمار کاندِ د عمر شمار دي دا

زه **رحمان** له هغه علمه پناه غواړم
چه له دینه له مذهب وي سوا

دوباره دِ دالله نشته په دنیا
نن دِ وار دي که دروغ کړي که رښتیا

هره چار چه تر وخت تېره شي عنقا شي
عنقا نه دي په دام نښتي د هیچا

تورخ تېري اوبه بېرته نه جاروُوزي
نه جاروُوزي تېر ساعت په بیرته بیا

تېر ساعت په مثال مړي د لحد دي
مړ چا نه دي ژوندي کړي په ژړا

که مقصود لري تلوار کړه وقت کوتاه دي
غره مه شه د دي عمر په بقا

هره نښه چه صحیح ګڼړي په زړه کښ
په غرور به هغه نښه کړي خطا

په امید امید ئي خلق نا امید کړ
د ایّام له مکره مه شه بي پروا

چه دَ مرګ به تماچه دِ شي خوله ماته
ترو په ماته خوله به څه کوي ثنا

وِیر ژړلي ارنیني چه وینا وایي
تا نه وایي که پوهیږي په وینا

هلک نه یي چه په زور دِ څوک تعلیم کا
هم عاقل یي هم بالغ یي هم دانا

په عمل د نیکو بدو فهم وکړه
چه په دا کښ دِ بهبود دي که په دا

سر دِ نه په ګریوان کړه سترګي روڼي
دیر په پورته پورته مه څه سرهوا

سرهوا سرهوا مه څه و آسمان ته
ته په اصل کښ له زمکي یي پیدا

| | |
|---|---|
| که پیدا که پوشیده دي که اوسط دي | په هم‌ؤ وقوف‌دار دي رب ځما |
| شریک نه لري په خپلي بادشاهئ کښ | بي شریکَ شهریار دي رب ځما |
| هسي نه چه واحدي ئې ده له عجزَ | په واحد وجود بسیار دي رب ځما |
| حاجت نه لري د هیچا و یارئِ ته | له هغو سره چه یار دي رب ځما |
| څه حاجت دي چه وبل خوا ته ئې غواړم | په خپل کور کښ همکنار دي رب ځما |

هیڅ تغییر و تبدیل نه لري رحمانَ
تل تر تلَ برقرار دي رب ځما

| | |
|---|---|
| که نمانښام تر ستونِي ښکته کړي حلوا | صبا خواست کوي له خدایَ د ښوروا |
| په هیڅ حال کښ دِ قرار و صبر نه شِي | لیوني کړي ډېر حرص ډېري هوا |
| تمام عمر تر آشنا تر عزیز پوري | بوي کیدي مختورن کړي هم رسوا |
| چه په خپلي رسوائِ دِ پروا نشته | نور به څه کړي په جهان د چا پروا |
| چه د نفس دپاره لاس وچاته نسي | دا زحمت له خدایَ غواړي که دوا |
| نفس بي‌شمارَ عالم پرې‌یست وکوهي ته | خداي دِ نه کا نابینا د چا پیشوا |
| په روا په ناروا کله پوهیږي | وچارپاي ته څه روا څه ناروا |
| چارپایان که غوښ و سنزکي لري څه شو | په معنیٰ کښ نابینا دِي ناشنوا |

# انتخاب

## د دیوان د عبدالرحمان

کوره هسې کردګار دي رب خما
چه صاحب د کُل اختیار دي رب څما

هغي بزرګواران چه خوک ئې وايي
تر همهٔ بزرګوار دي رب څما

نه ئې هیڅ حاجت په چا باندِ موقوف دي
نه د هیچا منت بار دي رب څما

له نیستئ ئې د هستئ صورت پیدا کړ
هسې رنګ پروردګار دي رب څما

هم صانع دي د جمله وُ مصنوعاتو
هم سامع د هر ګفتار دي رب څما

چه ئې هیچرې نه مثل نه مثال شته
د هغو عطرو عطار دي رب څما

هر تعمیر چه د دنیا او د عقبیٰ دي
د همه وارو معمار دي رب څما

خواننده د نا نویسو صحیفو دي
داننده د هر اسرار دي رب څما

که ظاهر دي که باطن دي که مابین دي
له همه وُ خبردار دي رب څما

انتخاب

# د دیوان د عبدالرحمان

مهمند ساکن د بهادر کلي

وهغو وته چه خداي پخپله وښود ‌ ‌ څه حاجت ئې د رحمان په گفتگوي شي

اوس بې شکه دِ له زړه نه کړه غم لرې — چاچه تا نه عکس کړ هغه اوس خوار شه

استقبال ته ئې تمام جهان روان شه — بادشاه وُوِ شکر شکر بخت مِ یار شه

چه نژدې بهرام له راغې په ژړا شه — وِئې شکر رابشکاره چه دِ دیدار شه

وِ په خیر راغلې اوس زوئ مسافرَ — په راتله دِ خما زړه رنځور بیدار شه

پلار او زوي په ژړا سره یوځاي شُو — دواړه یو تر بلَ غیږ او هم کنار شه

د بهرام سترګې ئې یو تر بلَ سکل کړې — تا به وِ چه په بادشاه باندِ بهار شه

د بهرام واده ئې سر دوباره جوړ کړ — خلویښت شپې ورځې په روم کښ دندوکار شه

نور ئې تاج د بادشاهۍ بهرام ته ورکړ — د ښه خداي په عبادت کوښه کنار شه

هسې رنګ عدالت بهرام را واخست — چه عاجز سړي خوشحال دنیاوار خوار شه

په هغه ملک ئې نامه خوره شوه ډېره — ناګهانه پرِ د موت ښښه اظهار شه

خدایَ رحم هم پرِ نه وکړي رحیمَ — هرچه لاړل په نصیب ئې پاک دیدار شه

چه ملکونه ئې آباد په عدالت کړه — بادشاهت ئې ښائسته لکه ګلزار شه

ګل اندامه شهزاده سره یوځاي وُو — محبّت ئې زیات ترحد لیل و نهار شه

د بهرام د زړه مقصود سر شه **فیاضَ**
تماشګیر د ګل اندامي د رخسار شه

مرحبا داوچه بیشکه حورالعین ده | په دنیا کښې له جنت ده راوتلې
خلوینت ورځې ئې واده کاوه یارانو | همه بې شانه توپخانې به خلاصیدلې
د بهرام د ګل اندامې نکاح وشه | خالقې شوې کوراکور سره داخلې
په محل ئې د بهرام کړله داخله | د ښه خدای ثنا ئې ډیرې درستولې

بیا ئې نیت د تلو د روم وکړ **فیاض**
د بهرام لښکرې ګل سنبالیدلې

ګل اندامه شوه سوره لښکر طیار شه | آدمیان لښکر پیریان کورنه رفتار شه
فغفور ډیر جوهر ګوهر له لور سره کړه | خلوینت زره سهیلۍ ئې خدمتګار شه
له فغفوره په ژړا ژړا رخصت شوه | د ګل اندامې په ژړا ژړا رفتار شه
شهزاده بهرام رخصت شه له فغفوره | په ژړا ژړا به یو د بل کنار شه
چه بهرام په ولایت د روم داخل شه | و شبرنګ ونه ګویا په دا ګفتار شه
چه ورخه بادشاه خما په حال خبر کړه | شبرنګ زر ورځنې ورانډې په تلوار شه
په کشور بانډې ئې زیرې د ښادۍ کړ | په کشور بادشاه جهان لکه ګلزار شه
ولې شاه مبارک شه غوږ پر کیږده | پس له دې خوشحال خندان شه اوس ډوار شه
په دباؤ په بادشاهت کښې ښه مقیم شوې | درښکاره چه د بهرام ښایسته رخسار شه

د تصویر په یو نظر په تامین شه — چه دِ پریکوي د بهرام د زړګ ولي

بهرام دا وِ ته غوږ کیږده ګُل اندامي — دي جواب غواړي له تا نه د چین ګُلي

ګُل اندامي وِ ته پلار خما قبول کړه — د بهرام خبري ګُل دِي ما منلي

ګُل اندامي چه دا حال ورته معلوم کړه — سراسیا سهیلۍ واړه رخصت شولي

دغه حال ئې و بهرام وته ظاهر کړ — ښاپیرۍ ورته ولاړي و دریدلي

بهرام وِوِ و صیفور ته خما وروړ — ګُل اندامي په دا شان ګرانه نیولي

بیا صیفور ورته ویل بهرام وروړ — سراسیا خور مِ وتاته ده بخښلي

حکم ستا دي خما څه زه غلام ستا یم — هرچه وایي واړه مونږ قبولي کړلي

سراسیا ئې په نکاح ورکړه فغفور ته — په واده ئې نغاري و غوبولي

پس واده هم روح افزا شوه و صیفور ته — ښاپیري ئې په واده کښ لوبیدلي

دغه پس د بهرام واده ئې جوړ کړه — رنګارنګ جوړي زرینې رغیدلي

ګُل اندامه ئې کړه داخله په محل کښ — د سرو تیک ئې په جبین ښغلي کولي

په اوربل باندِ ئې قط د ګلو جوړ کړه — مزغلري پرِ د پاس جراو کړلي

چه پیزوان ئې په سرو شونډو باندِ سور کړه — خلقي ئې بي ګناه قتلولي

چه زیور جامي ئې واړه پرِ انبار کړي — خلقي ئې نندارو ته و دریدلي

شهزاده بهرام قبول کړه ګل اندامي — ناست د زړه لي چاپېر ستا د زلفو لومه
د بهرام په سوي زړه باند نظر کړه — ستا د هجر په لنبو کښ شه سرګومه
نه جواب تې سراسيا خوري ذر راوړه — نه هوښياره د زړه حال ئي کړه معلومه
سراسيا او روح افزا سهيلۍ واړه — شوي رواني واړه دوي ددي تر بومه
په محل د ګل اندامي شوي داخلي — خنده روېي تلي هېڅوک نه وي مغمومه
لا په خوا وه ګل اندامه خبر شوي — چه به راشي سراسيا د يار له بومه
مشک عنبر ئي په محل ووپوک وهلي — خوش بوئي ئي په هر لوري تله مضمومه
ځاي په ځاي مجلس کېږ په خوخو قسم — ميلمستيا ز سراسيا وه له هجومه
ګل اندامه سراسيا سره يوځاي شوي — سهيلۍ ورته ولاړي وي محکومه
ملاقات چه سره وشه پس له درنګ — ورته راغي ښه ناري خاص له عمومه

چه ناري ئي کړ تمام واوره **فياض**
ښه مجلس ئي کړ آغاز نه وي مغمومه

يو ساعت سره خوشحال خنديدلي — بيائي داخبري مسنځ نه واچولي
سراسيا و ګل اندامي بهرام سوزي — په ګريبان باند ئي اوښي بهيدلي
شپه او ورځ ئي هاي فراق درېښي زوړ شه — چه د زلفي په سپين مخ دي غوړيدلي

په سل رنګ مِ رضا که دي مِ زوم شي
بل به لوي شم نو عيب و ترجمه

ګل اندامه په سرمستنه حکم خپل کا
وَس مِ نه شي جواب نه باسم له فمه

لور څما په ويل نه راشي وزير
تفحص بويه نور ما کړه مسلمه

شبرنګ وِ که د بادشاه په دا رضا وي
شهزادګۍ د چا په خولي زه و پوښتمه

نور فغفور وِ ډير دِ ښه وُو شبرنګ
شبرنګ وکړه د تدبير ښا محکمه

شبرنګ وُو شهزاده نه چه بهرام
ګل اندامي له څوک وليږه اکرمه

هم له دي نه تفحص تحقيق پکار دي
دَه د دي رضا په هرچا مقدمه

فغفور ډير په تا راضي دي بي حساب
مګر والي دَ خپل واک ده شيرين فمه

بهرام وِ چه سراسيا به وليږم زه
ورسره هم روح افزا ښاپيرۍ سمه

هوښياران په مصلحت کار کړي **فياض**
څکه کار ئي وِي خالي له پيچ و خمه

نور بهرام وِ سراسيا خوري وردرومه
ګل اندامه خبر کړه څما له نومه

ورته وايه ستا د ميني په اور سوي
شهزاده بهرام راغلي دي له رومه

ستا په دربښ څومُده ملنګ فقير وه
ستا له وصلَ ناقرار دي ډير محرومه

زه بهرام يم را ليکلي تر تا پوري
ګل اندامي وايه ستا رضا په کومه

نور فغفور وِ روي دخداي لښکر قرار کړه ‌ ‌ ‌ په رعيت م اوس آفتاب نيزه واره شه

نور بهرام وِ ما ويل ښکاره ښه نه دي ‌ ‌ ‌ اوس رعيت دِ په فرياد په کوکاره شه

نور يُ غنډ کړ و شماس نه برقرار شه ‌ ‌ ‌ بيا شماس هم ولښکر ته په ناره شه

د صيفور لښکر قرار بيا صف په صف شه

اي **فياض** د بهرام توت ښکاره شه

شهزاده په دا اميد کښ وه عالمه ‌ ‌ ‌ خداي به ما له گل اندامي کړي همدمه

آدميان پيريان لښکر ورسره ناست وُ ‌ ‌ ‌ خداي يُ مل وه څکه چار يُ شوله سمه

په لښکر کښ ځاي په ځاي شُو سرودُنه ‌ ‌ ‌ دبهرام لښکري ناستي وي بي غمه

خو آخر شبرنګ وزير مصلحت وکړ ‌ ‌ ‌ خو به ناست يُو په دا ځاي کښ خوښ خرمه

غرض دا چه عرض د چين بادشاه ته بويه ‌ ‌ ‌ چه مونږ خلاص کړو د بهرام واده له غمه

وزير لاس په نامه ودريده بادشاه ته ‌ ‌ ‌ نور يُ وُوِ قبله گاه صاحب کرمه

خود ظاهر دي د بهرام مطلب و تا ته ‌ ‌ ‌ زه به څه قصه کوم زيات و کمه

مونږ خپلي غواړو له تا نه په ښه مينه ‌ ‌ ‌ که بادشاه څموږ آرزو که مسلمه

په دا شان سره دوستي غواړو له تا نه ‌ ‌ ‌ دا خواب لا له زر داکړه تر يو دمه

بادشاه وُوِ اي وزير څما ورور ‌ ‌ ‌ شهزاده بهرام مِ خوښ تر نور عالمه

بیا بادشاه وِ راته حال د بهزاد وایه
په څه شان دِے د بهزاد خاوري لښکر کړ

یکښها وي که لښکر هم در سره وه
چه دِ قطع د بهزاد بلغاړي سر کړ

ستا لښکر څوک آدم زاد وُو که پیریان وُو
چه لښکر دِ د بهزاد زیرو زبر کړ

شهزاده وِ ځما بل قسم لښکر دي
خو پټ ښه دي او نه نه لوي به ضرر کړ

خلقه به دِ دچین تړ و لړزیږي
ښځینګ به نه شي خوارو زار به هر بشر کړ

نو بادشاه وِ خواه مخواه ئې راڅرګند کړه
په ښه شان په ښه شوکت راته اظهر کړ

د شماس ویښته بهرام وسو په اور کښ
نو شماس ورته ښکاره ګوشه بشر کړ

شهزاده سړِ راته غوږ کیږده شماس
ته مِ وروړ بي که حاضر دِ خپل لښکر کړ

شماس لاړ شه په لښکر پسي **فیاض**
په ساعت کښ ئې لښکر خپل میسر کړ

یو ساعت پس د صیفور لښکر ښکاره شه
نو دچین وګړي درست په ننداره شه

په هوا ناري سوري د توپو دوند شه
درست جهان ئې په هیبت یوه ناره شه

تش دارُو به خلاصیده ګولئ به نه وي
مخ د زمکي په عالمو ګواره شه

دچین ښهر ئې تمام سره ګډوډ کړ
پلار له زوئ زوي له پلار ویزاره شه

په ساعت کښ ئې قیامت ورباندِ راوست
ننداري نه هر سړي نوبه کاره شه

شبرنګ مخ د شهزاده له هیروپاک کړ
په سل ځل تر قربان شه مکرره

بیائې غسل وله ورکړ سر تر پایَ
د بنائست شعلي ئې زیاتي شوې ترنمره

ګل اندامه نناري ته وه ولاړه
د عشق سري لنبې ئې تللي له ځګره

په ژړلو ګل اندامي سترګي سري کړي
د بهرام میني له عقل کړه اوتره

په پهلنګ باندِ پرته لکه مرده وَه
دا دَ عشق کارونه ګوره برادره

د فغفور بادشاه ترځایَ بهرام راغي
ږو په باغ کښ رنګارنګ پرانه بسترِه

هغه شپه شوه په دا شان تیره فیاض
خوشحالي خندا هوس ږو تر سحره

صبحدم شه مُلا الله اکبر کړ
نور بادشاه وزیرته دا رنګَ خبر کړ

زه دیدن ته د بهرام شهزاده ځمَ
دَ بهرام دیدن وما ته خداي اختر کړ

آس سپاهیان وزیرَ ګُل راته طیار کړه
نور وزیر ورته حاضر واړه لښکر کړ

غرض دا چه دَ بهرام په لور روان شه
او بهرام ته ئې قاصد وړاندِ پیشتر کړ

چه بادشاه سنا ملاقات لوه راځینه
استقبال ته ئې بهرام روان زړه ور کړ

چه بادشاه او شهزاده سره یوځاي شُو
ګویا نمر سپوږمۍ ږو باغ ئې منوّر کړ

یو دبل د خیریت خبري کړلي
په دیدن دیدن ئې یخ د زړګي سر کړ

شبرنګ وِچه مانړیٔ د ګل اندامي — په کوم ځاي ده ځوک دِ کړي رانه اظهره
پو سري شه ورسره تر مانړیٔ پوري — شهزاده بهرام ئي کوت نور البصره
شهزاده بهرام ئي وليد کِند آغوستي — د دونهي په غاړه ناست وه بي آثره
ګل رنګ مخ ئي په هيرو سره سپيره وه — هر اندام ئي آلوده له خاکستره
د مخ رنګ ئي هسي رنګِ په بل شان وه — چه شبرنګ ورته حيران شه بوادره
نور شبرنګ وِ دا بل ځوک شهزاده نه دي — يا خوخوار شوي د بهرام ښائسته بشره
په ورو ورو ورته نژدي شه چه وکورم — په ښه شان سره ئي تيږ کړم تر نظره
په تحقيق ئي کړ معلوم چه شهزاده دي — نور په بيرته تر روان شه بي‌خبره
په بادشاه باندِ ئي زيري دَ بهرام کړ — په دا ښهر کښ بهرام ښته نازپروره
بادشاه دور ښادنامي وغږولي — چه خبر شه په دا حال ځما دلبره
شاهانه آس و پوشاک ئي زرطيار کړه — و وزير ته ئي وِ ورشه معتبره
ګل لښکر شبرنګ په مخ د مانړیٔ راوست — ګل اندامه شوه خبر له شورو شره
وِ داځه بلا لښکر راغي مانړیٔ ته — له دي حال ما خبر کړئ زر تر زره
چا وِ دلته يو فقير وه ستا په در کښ — شهزاده بهرام هغه شه مفرره
ګل اندامي ورته وِ دولتئ ويڅي — ما ويل چه شهزاده دي نازپروره

خزانچي ته يې وخط د بهرام راوړه ‌ ‌ ‌ خزانچي ته په داوړو باند مشير وه

خزانچي خط د مجلس منځ ته کذار کړ ‌ ‌ ‌ شبرنګ خط د بهرام ويږاند بصير وه

نور يې وخط ځموږ د شهزاده دي ‌ ‌ ‌ چاچه بل ګمان کاوه پوچ يې تعبير وه

دا کاغذ کوټي ځموږ د شهزاده دي ‌ ‌ ‌ په بهزاد باند هم ده کړي شبګير وه

په دا حال بادشاه دچين خوش شه **فياض**
نور يې حکم دم درحال په خپل وزير وه

بيا بادشاه وزير ته وو همزوره ‌ ‌ ‌ چه بهرام راته حاضر کړه تر سحره

بادشاه وو که بهرام لا له چا راوست ‌ ‌ ‌ انعامونه به زه ورکړم له سره زره

چه بهرام دلاور وينم په سترګو ‌ ‌ ‌ چه په شپه جنګونه کاند بې رهبره

بيا يې و پوښتم لښکر د کوم عالم وه ‌ ‌ ‌ آدم زاد وو که پيريان ځما دلبره

د بهزاد د قتل حال به تې معلوم کړم ‌ ‌ ‌ وه يوانځې که لښکر وه برادره

په هر لوري حکم لاړ چه بهرام ګوري ‌ ‌ ‌ سواره پلي ګوزيږه تر بحر و بره

شبرنګ وو خلقه په عقل خامه ‌ ‌ ‌ چه بهرام په صحرا غواړي ده اوتره

دې عاشق د ګل اندامې په اوربل دي ‌ ‌ ‌ عاشق ناست وي د معشوق له خاکستره

شهزاده بهرام به وي په هغه ځاي کښ ‌ ‌ ‌ چه باد بوي وله راوړي د يار له دره

شه رخصت په هغه وقت لښکر وچين ته | په خيرات ئي رضا کړي هر فقير وه
غرض داچه لښکر ورسيده چين ته | هر سپاهي په منزل ستړي هم حقير وه
ترڅلا دچين بهرواړه ډيره شو | ننداره ته ئي دچين وګړي خير وه
چه فغفور بادشاه خبر شه له دي حاله | ملاقات له ئي ليګلي خپل وزير وه
چه وزير د بادشاه ورغي ملياشه | په ورتلو ئي رضا کړي هر فقير وه
نور وزير ورخپل احوال راته ووايه | څه د کار څه د غرض څه د تفسير وه
نور وزير پيشکشي ورکړه بل وزير ته | بيا ئي خط ورلره ورکړ چه تحرير وه
مطلب دا چه د بهرام احوال معلوم کړه | په دا څکو کښي حيران ګنجور وزير وه
بيا ګنجور و بهرام لښنه په داځاي کښ | که بهرام وي خود به هرچا ته تشهير وه
څکو يو بهرام څوک راته معلوم دي | هر صفت په کښ موجود روشن ضمير وه
يو خدمت ئي څو نو کړي دي شبرنګ | مونږ و دي ليدلي نه دي څه بشير وه
ملائک دده لښکر په شپه راکوز شه | نور ئي قتل کړ بهزاد چه لوي شرير وه
نور ئي خط وښکله په نوره شپه روان شه | خط ئي بيا موند شه صباح چه خوش تقرير وه
حال احوال ئي شه معلوم په هغه خط کښ | مونږ سنبال کړ قاضي لوستي بو نظير وه
نور شبرنګ و هغه خط راته معلوم کړ | دم درحال ئي خزانچي راوست دستګير وه

له بادشاه نه په انعام دد لره واخلم — هغه زوي د بادشاه ډیر وه نازولي
له شبرنګ سره سپین‌بیري را روان شه — د بادشاه په مخ کښ راغي وردیدلي
د بهرام حال يې معلوم کړ و بادشاه ته — په دا زیري بادشاه دور وه عبروولي
ډیر انعام يې د سپین‌بیري لره ورکړ — نور سپین‌بیري يې رخصت کړ په نامخلي
د بهرام حال چه معلوم شه د بادشاه ته — د لښکر تدبیر يې کړ چه واستولي

بیا بادشاه په زړه خوشحال کښیناست **فیاضَ**
چه معلوم د شهزاده شه کور د کلي

د کشور بادشاه صالح نامه وزیر وه — په هر کار کښ پوهنده بنه يې تدبیر وه
وزیر د باله بادشاه واوره حضور له — بادشاه ډیر په خوشحالۍ ناست په سریر وه
وِ چه اي وزیرَ زر لښکر طیار کړه — بي حسابَ لښکر راغي لوي بهیر وه
وزیر ډِ بادشاه دِ حکم کړي طیار يُو — په مجلس کښ ورته ناست هر یو امیر وه
په فغفور بانړ کشور بادشاه خط وښکه — نور په خط کښ بادشاه ښکلي دا تقریر وه
تفحص ښا د زدي وکړه بادشاهٔ — بادشاه ښکلي په قاعده هسي تفسیر ده
ستا په ښهر کښ م زوي بهرام يې نوم دي — درغلي په خاطر يې د عشق تیر ده
نور کاغذ يې د وزیر په حواله کړ — او شبرنګ يې د هه فوجونو میر وه

که خبر چا د بهرام لا لره راوړ
نصفي سبهرم هغه ته دي نجنبلي

و هر لور ته حکم لاړ چه بهرام گوديږ
په بهرام پسي روان شو سور و پلي

د بهرام د پلار اوبني شلي بيک وو
په دا وارو شبرنګ غوره آزميلي

په بهرام پسي بادشاه واړه رخصت کړه
و شبرنګ ته بادشاه ډير وه قهريدلي

که خبر دي د بهرام لا له را ته وړ
سر به ستا له تنی غوڅ کړم بريدلي

شبرنګ پل د هوسي واخسته روان شه
ناګاه وه هغه ګنبد ته رسيدلي

شبرنګ ننوت د ته په ګنبد کښ
يو سپين‌ديري په کښ ناست وه صورة بنکلي

ده سلام ور باندي ولو اي سپين‌ديري
په نزدي مُده کښ څوک دلته راغلي

خوبصورت شهزاده بهرام ئي نوم دي
د پدر نوم ئي کشور تا آوريدلي

نور سپين‌ديري ور ته وويل اي ځوانَ
وه راغلي شايسته صورت بناغلي

دا څهره ئي وليده زړه ئي پرِ بايلو
له دي حالَ ئي نور زه وم پوښتنيدلي

ما وِ ځوانَ دا څهره د ګل اندامي
د فغفور بادشاه دختر چين ئي دي ګلي

که ما ډير منعَ کاوه چين ته روان شه
خو د آس و شا ته وخوت الوتلي

نور شبرنګ ويل سپين‌ديريَ روبي دخدايي دي
ته د خدايَ دپاره څه بادشاه بللي

دغه حال در ته په څپله خوله ووايه
بادشاه ډير پسي زهير دي زړه خپلي

هم به کله مشرف په دا شرف شم — چه بي غمُ په هر ځاي په هر طرف شم
همیشه علي الدوام به په آدم یم — په ژړا په هر صبا په هر ماښام یم

آفرین په بهرام ډیر دایه **فیاضَ**
هره چار ئې مردانه بي اعتراضَ

هغه ورځ چه وه بهرام په ښکار وتلي — یو هوسي ئې وه په مخ کښ پاڅیدلي
درست لښکر ور ته ولاړ وه په دا طمع — اوس به راشي په هوسي پسِ دي تللي
بیا ورځ ور ته لښکر په صحرا ناست وه — امیرانو دا خبر وه کړزولي
چه صباح شه درست ښکر په صحرا سر شه — هم په دا سره نوبت وه غږیدلي
د بهرام خبر زر واخلئ ورهر لور ته — څه بلا شوه چه لا نه دي جار وتلي
په بهرام پسي ښکر شه واره ستړي — بیا ئې نه موند بیرته راغله سور وېلي
امیران ئې پلار ته ودریده بادشاهَ — عرض کړُو که بادشاه نه ږشي قهرولي
شهزاده بهرام چه راغي د ښکارځاي ته — یو هوسي ئې وه په مخ کښ پاڅیدلي
شهزاده ورپسي آس تیز کړ ناګاهَ — مونږ لښکر ور ته ولاړ دي زغلیدلي
اوس بادشاه دِ حکم کا چه مونږ هغه کړُو — د شاه حکم مونږ په سترګو دي منلي
بادشاه وِ چه اوس درځئ بهرام وګورئ — دغه کار م دي وتاسو ته سپارلي

ستا همت زانه معلوم شه همت ناکَ — خداي دِ خال خما نصيب شهزاده ستاکَ

اميد دا چه خال و خط به خما ستا شي — صبر واخله چه حاصل دِ مدعا شي

خما ستا وصال به وشي خما دلَ — بي له تا م شه توبه له يارَ بلَ

مګر دا چه صبر ته د ځان توينه کړه — لرِ بيرته له زړګي نه انديښنه کړه

زر به ستا خما وصال وُ سِشي مينَ — خاطر جمع فرياد مه کوه دردمنَ

زه به تا پاندِ مبينه ليم هرګوره — اندرون خاطر م ډک د عشق له اوره

پټ پنهم به سره راز کړو قلندره — چه وزګاره خلقه نه شي خبره

خما ستا به سر سوګند دي جفا نه کړم
هر چه ستا د زړه رضا هغه به زه کړم

نورئي ورکړ دا کاغذ و دولتئ ته — وِ ئي زر ئي رسوه هغې ډيرئ ته

دولتئ کاغذ حاضر کړ و بهرام ته — شهزاده بهرام نظر کړ و پيغام ته

چه بهرام د کاغذ حال واړه معلوم کړ — وِئي شکر د يار زړه چه الله موم کړ

بهرام ډير په زړه خوشحالَ شه يارانو — چه معلوم ئي کړ دا حال صاحبدلانو

په دربار د کل اندامي ناست فقير وه — په مطلب ئي خال وخط دا ئي تدبير وه

لا به کله په وصال زه سرفراز شم — په تولي د عاشقانو به ممتاز شم

# خط د گل اندامي

۱

اي گندپوشَ په رښتيا ښما عاشق يي — شوه معلومه چه رښتيا يي نه فاسق يي
اوس به ور د دنا لري کړم و تا ته — دغه حال زه په رښتيا وايم و تا ته
ستا د عشق غشي م خښ د زړه په سر دي — هغه ورځ چه م ليدلي ستا بشر دي
ستا د ميني اور م بل دي په خاطر کښ — خه شوُ دا که ليدي نه شي په ظاهر کښ
يو دم نه يم ستا له غمَ په آرام — روغ عالم ته په خندا يم په ناکام
ډير غونه په تا نيز شوُ ښما يارَ — پس له دي هرس خندا کوه دلدارَ
زه به ستا په رضا کار کړمَ ميڼَ — پس له دي به ستا خدمت کوم غمجنَ
تا چه حال را ته معلوم کړ شهزاده يم — اوس م خاوري ستا په در کښ افتاده يم
يا دا حال د چا ته مه وايه دلبرَ — په غوږ داوره اي ښما د زړګي سرَ
هسي مه وايه چه زوي زه د بادشاه يم — هسي وايه ننډپوش فقير ګدا يم
که خبر شي څوک په دا چه شهزاده دي — په دربار د ګل اندامي افتاده دي
ښا ستا حال به معلوم هه عالم کړي — ګفتګوي به ښما ستا نور په هرچم کړي
ځان په دا فقيريُ پټ ساته بهبود دي — هغه کار به زه کوم چه ستا مقصود دي

دا حیات را ته تیاره مرګ روښنائي ده — چه د یار په درګښ ومري دانائي ده

ته چه ما وته پیغور د تخت و تاج کړي — له پیغور م مرګ ښه که م علاج کړي

زه له اصله شهزاده پلار م بادشاه دي — اوس یم خاوري ستا په درګښ حال م دا دي

ولي نوم در ته څرګند نه وایم چه دا دي — نه به ملک در ته ښکاره کړم چه څما دي

ستا په درګښ نمدپوش فقیر ملنګ یم — ستا له عشقه هسي شان بې‌نام و ننګ یم

سخت په زړه یم چه لا پایم تر دا اوس — زیست روزګار م همیشه ستا له افسوس

خدای م بخره کړه ژړا چه خوار و زار یم — ستا په درګښ زه ګندپوش و لاهنیښګار یم

څو به پایم په دا شان څما مرغوبي — خود به ومرم آخر ش څما محبوبي

څما پلار هسي بادشاه دي عالیشان — په دربار کښ ئي حاضر دي سلطانان

په دنیا کښ هغه نور چه بادشاهان دي — تمامي د قبله‌ګاه م په فرمان دي

که حساب د هغو خپلو خزانو کړم — د سپاهیانو د لښکرو توپخانو کړم

ستا د پلار چه هغي واړه منشیان دي — یا لوستونکي یا لیکونکي کاتبان دي

که همه واړه لیکي دا حسابونه — نر به ډک شي او یا زر کتابونه

دا حساب به ئي خلاص نه شي تر قیامت — که ئي وښکي همګي له کتابت

ولي نه وایم زه اوس چه شهزاده یم — لکه خاوري ستا په درګښ افتاده یم

# خط د شهزاده بهرام

شهزاده وِ سروقدي ماه رخساري
ته راضي د دردمندانو په آزار يي

لږ نظر وکړه د ما غُندِ حيران ته
روي د خداي دي نظر مه کړه آسمان ته

ونا راوړه جفا لږي کړه له ميانَ
په پرهر م مرهم ته کيږده جانانَ

د مجنون قصه دِ چرته آوريدلي
چه له عشقَ دليلا ئي وه ويلي

ځان ئي ورک وه خو ليلا ورته ليده شوه
هم په دا وينا ئي ژړه چليدله شوه

دليلا په عشق کښ هسي مبتلا وه
چه په ژړه ئي نرم سنکلي دليلا وه

بي آرامَ خالي ناست وه له هرسَ
ځان ئي ځار کړ دليلي د در له خسَ

له مجنونَ ځما عشق دي لا ديپاسَ
کل اندامي زه خالي يم له لباسَ

ځان م هير دي هر ساعت راته ته ياده
دا وعده م په نامه د پاک مولي ده

ستا له دَ په لاړ نه شم احبابَ
که د سر سودا م وکړي له قصابَ

ستا په درکښ خوار وزار وخسته بنه يم
زه په تخت د بادشاهيږ ناست بنه نه يم

ستا په عشق کښ م ځان سپک کړ نازنيني
اي په تخت د سلطنت بالا نشيني

ستاله عشقَ م په مخ رودونه ساز شو
چه ترخه ديلي له تا نه بي انداز شو

دلسوزي م په تا ډیر ده دلبر
غوږ پر کیږده اي ښما د زړګي سر

طمع مه کړه چه دا باغ به ښما ستا شي
پند م واخله دلسوزي ښما په تا شي

له دې ځاي پاڅه ځه کوښه کنار شه
له دې عشق په توبه په استغفار شه

زرخریده غلامان م پاسبانان دي
دوي ښما ځوکۍ کوي ډیر ظالمان دي

که خبر شي چري ستنا په دا احوال
سر به ستا له تني غوڅ کاندي في الحال

بیا به تا په اوښ بالا کاندي پریشان
ګرزوي به دې بازار کښ په دا شان

نفس به ستا پاره پاره وي په جمدر
دوي به وايي هغه دا دي قلندر

چه مین وه دې د چین د شاه په لور
ځکه پیښ د ده په حال شه دا ضرور

د نهوري به په دا شان په هري لاري
په هر لوري ګرزولي شي بسیادي

در ته وایم که لري ځه شرم ننګ
زیاتي مه شه ته ښما د در ملنګ

که بهرام چرته خبر شي د فلک
دي به شي په دا خبره باندي ګلک

له زمین به دې بالا کړي په آسمان
له آسمان به دې وړلي په دا شان

چه هډوکي غوښي پوست به دې جدا شي
له وجود به دې سنا ژوندون جلا شي

چه ته مړ شي بیا به ځه کړي ګل اندامه
راشه مه ووزه له ځله ننګ و نامه

ننګیري کوه د خپلو فقیرانو
په آرزو کښ مه اوسه د بادشاهانو

بیا به نه مومي خما د وصل کام — در ته وایم دالیري ولي پیغام

بیا به نه مومي خما له باغ گل — پوچ بي ځایَ تیدري دا عمر خپل

راشه وباسه له زړه دا خما خیال — بیا به نه مومي خما د جبین خال

ستا په ښان عاشقان ډیر ځا په در — اي ژنده پوش آخر ځي خاوري په سر

ځان به کړي آخر په دا سودا خراب — اي ژنده پوشَ مه کړ دغه اضطراب

در ته وایم عمل وکړه په دا پند — دا خما ویل به در کانړ ډیر خوند

واوره لور وَه د بادشاه نوشیروان — تله حمام له بنایسته د گل په شان

باد یې لري کړ پلو مخ یې ځرگند شه — یو فقیر چه ولیده په عشق یې بند شه

نور مین په شهزادگۍ هغه فقیر شه — په کوځه کښ ور ته پروت دځان په ویر شه

شهزادگۍ ور ته رولري شه فقیرَ — نصیحت در ته کوم واوره اسیرَ

فقیر نه لري کیده له هغه ځایَ — همیشه یې سري کار وه له هي هایَ

شه خبر نوشیروان د ده له حالَ — د هغه کله یې پدیکړله في الحالَ

تا ته هم زه نصیحت په هغه شان کړم — نه یو واري نصیحت په هر زمانه کړم

اي درویشَ که م پلار په دا خبر شي — ستا و سر ته به هغه ساعت خطر شي

چه لا پلار م خبر نه دي پاځه دروم — له دي کارَ اجتناب واخله مغرومه

چه د عشق له غمه مړ وطن ئې عز شه — نور شیریني ته معلوم دغه خبر شه

شهزادګۍ شیرینه ووته له کوره — په فرهاد پسې روانه شوه سرتوره

چه نژدې شوه د فرهاد و جنازې ته — نور ئې وکتل د مرګ و دروازې ته

په فرهاد باندې را پرېوته ملاله — له فرهاد سره ومړه بې محاله

له فرهاد سره ئې ضم د جبین خال کړ — په دا شان ئې له مسکین سره وصال کړ

ته هم هسې وفا واخله ګل اندامې — روي د خداي دې اندېښني مه کوه خامې

ستا په درګېنې همګي چه عاشقان دي — در ته وایم هغه واړه خام کاران دي

صادقان نه دي دا واړه عاشقان — د دي وارو عاشقانو زه یم خان

که هرڅو در ته فقیر غریب مسکین یم — له دي واړه عاشقانو زه غمګین یم

همیشه یم ستا له غمه زه ګریان — بل خما په شان به نه دي سرګردان

لکه زه چه سرګردان یم بې سرمني — نه به زمکه نه آسمان وي پاک دامني

مفرور خما په زړه دي زر قصاب — چه م غوښې پرېکوي له دي جواب

## خط د ګل اندامي

بې شوده خبرې مه کړه دیوانه — عقل نه لرې لنډ پوش مستانه

که حیر شي هرڅوک ستا له دي احوالَ — خان به خلاص نه کري ښما له دي جنجالَ

بي له مرګَ به لاړ نه شي نه له چینَ — په وقت دردمه اي ښما د در مسکینَ

زهیرېږم زه په تا باندِ هرګوره — خلاص به نه شي یا ښما د عشق له توره

دا جواب ښما په دا باندِ تمام دي — پا ښه دردمه فقیرانو ته سلام دي

## خط د شهزاده بهرام

دا ښما سلام په تا دي نازپروري — رسوم وسوم ته ښما د زړګي سري

ګل اندامي ته ښما د سترګو تور يي — بي له تا رم پکار نه دي چونه توري

زړه رم ستا له جدائيُ قالمر قلمر شه — مخ رم تر په اوښو مجروم رم المرشه

وصال وښیه و ما غمدِ حیران ته — بد ویل مه کړه و ما غمدِ کریان ته

لاړ به نه شم زه په حیر ستا له بورجلَ — ما د ځکلي په اختیار له سرَ خپلَ

سرنګون لکه نرګس یم ستا له غمه — ستا د عشق شتيُ رم دَه په خاطر سمه

ستا له درَ به لاړ نه شم له خواريُ — ما منلي په تندِي دِي دشواريُ

ستا کوځه ښما کعبه د ناف عوتيُ — لاړ به نه شم که رم غوڅي کړي بوتيُ

د فرهاد مسکین له حالَ شه خبره — اوکه نه یي ادرس له ما واوره په غوره

نه درویش په درویشانو کښ چېل کار کړه
د شاهانو له کوڅې پاڅه رفتار کړه

له شاهانو وصال غواړې قلندرَ
نه له حال د بهزاد یې ناخبرَ

د بلغار شهزاده نوم د ده بهزاد وه
چه ښما د عشق په بحر کښ افتاد وه

له آسمانَ ور ته کوز بهرام فلک شه
چه لښکر ور سره مل هم د ملک شه

د بهزاد لښکر ئې کل تر تیغ تیر کړه
د بهزاد سر ئې په خاورو کښ تر زیر کړه

ویره نه کړې چه بهرام ښما عاشق دي
اې درویشَ هم هغه ښما لایق دي

اې گداې وصال څه رنګ ښما غواړې
بیهوده رم په دربار ولې ولاړې

لړ لړ له دربارَ رم روان شه
واوره غوږ باسه کوتاه خبر په ځان شه

کوره ومرې قلندرَ خبردار شه
په تلوار سره روان رم له دلبار شه

چرنه چه دِ آزار کاندِ سپاهیان
په هر در کښ رم ولاړ دې جلادات

په آرزو یه ته ښما د وصالت
سختۍ وویني هر کوره د قیامت

د محشر په عالمونو چه عذاب دي
هغه واړه مقرر دَ ستا په باب دي

پښې دِ وباسه له چینَ په شتاب
په ډَو زغله چه دِ کار نه شي خراب

نصیحت در ته کوم په څوخو شانَ
بیا به نه مومې ښما وصل جانانَ

هسې رنګ عاشقان په ما شیدا دي
چه په شپه کښ هم د ورځې په ژړا دي

ستا له زلفو بخت سیاه لرم دلبري
حال د غم د چا ته وایم نازپروري

د هجران دارو درمان غوارم له چانه
خود به ومرم عاجز ناست یم بي درمانه

نه آرام م شي د ورځي نه په شپه کښ
هسي غرق یم ستا د هجر په چپه کښ

خما ستا په سر سوګند دي نازپروري
حال م دا دي ته خما د زړګي سر یي

چه م لوستي ستا د مینې سپاره دَه
اندرون سینه م واړه صد پاره دَه

چه له زړه م ستا د زلفو مار پیچان دي
زړه م سوځي اندرون خما نیران دي

مه شه هسي په عذاب ځرک نازنیني
چه له سترګو م بهیږي مالي ویني

ستا د حسن آوازي دي په عالم کښ
په هر ښهر په هر کلي هره په سم کښ

په آرزو هم ستا د وصل بادشاهان دي
په تمام چین کښ میشته د عاشقان دي

لکن نه به وي خما په شان عاشق
له همه ؤ عاشقانو یم صادق

دا کلام خما په دا باندِ تمام شه
د جواب يُ منتظر خامه غلام شه

## خط د ګل اندامي

در ته وایم ته آګاه شه قلندر
چیر به وي ګذاذ دخوري له خنجر

تخت د تاج د بادشاهيُ در تحفه کوم دي
چه آخستي دِ خما د وصل نوم دي

د عشق اور ور باندې بل شه لاړه بیرته
نه ئې خوب نه ئې خوراک نه ئې آرام شه
عالم لاړه شه کوراکور دیدن تمام شه
دا دستور د گل اندامي مقرر وه
رکیبئ به ئې په لاس د وینځي ورکړه
وینځي نسه له هرچا ته را طلب کړه
و بهرام ته ئې ویل کینه پوش فقیر
بهرام کوته کړه ارتاده رکیبئ ته
دولتئ رکیبئ یوړه اندرون ته
د بهرام کوته ئې ولیده په سترگو
چه دا گوته د له چانه ده راوړي
دولتئ و ستا په در کښ یو فقیر دي
گل اندامي ور ته و دولتئ وینځي
له دې گوتې شه معلوم چه شهزاده دي
در ته وایه گل اندامي بیمر لیکلي

په پهلنگ د پاس پریوته اوتره
د بهرام په عشق کښ ناسته کوره کړه
بهرام راغي و دېرې ته له منظره
دي په وینځه گرزوله برادره
نسه آخله له هرچا ته معتبره
دولتئ بهرام له راغله برابره
ته هم نسه لا له راکړه قلندره
چه عمي ئې وه له لعل وله گوهره
تیره شوه د گل اندامي تر نظره
نور ئې و دولتئ زر کړه ما خبره
لوي قیمت لري دا گوته ده بهتره
دغه گوته له هغه شوه مبسره
دا فقیر څوک خالي نه دي له اثره
د زړه حال ئې کړه معلوم تر شه خبره
نه خپل حال را ته معلوم کړه قلندره

شهزاده بهرام ئې لا دېر ليوني کړ — نور مخ پټ کړ د مسند بالانشيني
چه نمابنام شه خلقه کړاکوړ لاړه — بهرام پاتې يکتنها لاړ شه دوهيني
تر کوخې د ګل اندامي بهرام راغي — په ديوال پورې کښيناست د دلبريني
نور ئې لار د تلو کته پوځاي ئې وليد — په ديوال کښې وه ساز کړي هغزيني
په ډرو درد ورته نژدې شه چه وګورم — چه احوال کړم شه معلوم د دلبريني
په هغو بهرام ورروخوت هغه ځاي ته — د محل خبنتي اکثري وي زريني
ګل اندامه وَه د تخت د پاسَ ملاسته — سهيلۍ ورته ولاړي بهتريني
درسته شپه ئې شهزاده ننداره وکړه — چرګر ځاي په ځاي ناري کړي صباحيني
صبحدم شه بهرام بيا راغي ډېرې ته — په فراق ئې وُچي کړي د زړکي ديني
په دربار کښې ورته پروت لکه فقير وه — بل ئې نبي د عشق خبري کړي رنګيني

ورته تير تر سر و مالَ شه **فياضَ**
چه په زړه ئې زخم کېښود ګُل رنګيني

بيا ديدن ته مياشت دويمه شوه له بره — ناره ځاي له خلقه راغله اکثره
لکه نمر مخ ګل اندامي را څرګند کړ — خلقه ئې په نظر کړه زير و زوره
شهزاده بهرام ئې وليد په عالم کښې — نور شتيۀ ئې په خاطر شوه برابره

مرني بهرام کِندپوش کښيناست فیاض
شپه او ورځ ئي و ديدن ته تمنّا شوه

بهرام ستړګي کړي خوني جامي زنګيني
په دربار کښ د يار پروت لکه فقير وه
ګرد عيار ئي د دربار د دواړو سترګو
لا ليدلي بهرام نه وه ګل اندامه
ده وِ وُومنم په سترګو ګل اندامه
شپه او ورځ ئي د ديدان ارمان په زړه وه
ناګهان په چين کښ دا رنګ غوغا شوه
دا دستور د ګل اندامي وه په مياشت کښ
خَلَقه ئي ديره جمع شوه ديدن ته
بهرام هم تر هغه ځايَ پوري راغي
له ماڼيءُ ځ ګل اندامي را څرګند کړ
خَلَقه ئي له ديدنَ ليونيءُ شـوه
د ښايست ثاني ئي نه وه په جهان کښ

کِند ئي واغوست شه فقير د يار له مينې
په مطلب ئي شينکي خال د نازنيني
شُو رانجه د هغي مستي دلـبريني
په صفت ئي پسي رنګ کړي جامي سپيني
ما په دي لېبي جامي کړلي رنګيـني
بل خوراک ئي وه نړيءُ وادره کـهيني
نن په ځ وبنو له ورايه د ګل کيني
ځ په دي يو ځل ښکاره کړ چه م ويني
رنګارنګ زېلي رانله پکړيءُ ئي سپيني
رنګارنګ دي خلقي جوړي رينميتي
جوړ شعلي د نمر ښکاره شوي تکي سپيني
چه ښکاره ور ته چين کړ مه جبيني
ځکه تلي پسي د هر چا اوبني سپيني

هغو وُړِ مونږ هيڅ نه ليده په سترګو — غيبانه ګذار کيده غيبي زوکا شوه
په ساعت کښ يُ هغه تر تيغ تير کړو — خلقه په يوه درنګ هسي فنا شوه
نور يُ بيا مونده ينزه سر خط پر پوري — تر بادشاه پوري يُ وره ظاهره دا شوه
هغه خط بادشاه په لاس د قاضي ورکړ — قاضي ولوست هغه خط معلومه دا شوه
چه بيشک د بهزاد قاتل بهرام دي — د کاغذ ژبه په دا رنګ ګويا شوه
بادشاه وُړِ بهرام څوک دي معلوم کړي — مرېځ دي دا صرانه تر ادا شوه
وارو وُړِ بهرام څوک دو ته معلوم کړي — نوم يُ اوس مونږ آوريدلي ګرانه دا شوه
وزير وُړِ بهرام اوسي په آسمان کښ — اي بادشاه که دِ غوره دا وينا شوه
ملائيک د ده لښکر در سره راغله — څکه پيښه په بهزاد دا رنګ سزا شوه
نور په شپه ور ته راګوزشه له آسمانَ — د بهزاد د لښکر هيره بسم الله شوه
بادشاه وُړِ صد رحمت په تا وزيرَ — دغه ستا پوهه بنايسته غوره څما شوه
مال دولت يُ د بهزاد واړه قسمت کړ — د بادشاه د وزير غوره دا وينا شوه
کل زخميان يُ د طبيب په حواله کړه — له بادشاه خَلقَه سل رنګ رمنا شوه
خط ينزه يُ د خزانچي په حواله کړه — د دي دواړه خصمانه ګوره په تا شوه
بادشاه دور غږاوه بيا په تخت کښيناست — خَلقَه په مبارک ور ته ګويا شوه

مرېځ

د لښکر مرجونړاکانو ډېر فکر وکړ لیکن هیڅ قدر په حال پوه نه شول بیا ئې د هغه وطن مرجونړاکان را وغوښتل پوښتنه ئې د هغې غاړې د تللو تر نه وکړله ✤ هغو وویل چه په فلاني ځاي د پورې وتلو لار شته مګر که اوبه په چپو راشي نو ټول خلق به هلاک شي ✤ سلطان استخاره په قرآن مجید وکړه او توکل ئې په مهربانئ د خداي وکړ او د امیرانو او د سپاهیانو سره ئې آس په اوبو ور واچاوه سلامت پورې غاړه ور ورسیده ✤ پرم دیو ته سلامتي د ځان لوي نعمت ښکاره شه او له ننګ او له ناموس تېر شه یواځې د فقیرئ په جامه کښې له قلا نه را ووت چرته یو ګوټ ته وتښتیده ✤ او سپاهیان د سلطان په قلا ور ننوتل کفار ئې ډېر ووژلل او ښځې هلکان د هغو ئې بندیان ونیول او مالونه او جواهر د راجه ئې د سلطان په خزانه کښې داخل کړل ✤ سلطان فتح مند او بريناک غزنوي ته لاړ شه او چه د هغه وطن صافه هوا او ښایسته ځوانان او تازه باغونه او رڼې رواني اوبه او نور د خوشحالئ اسبابونه ئې ولیدل نو بیت ئې ځو کالَ د هغه ملک د اوسیدلو وکړ بلکه دا ئې خوښه کړله چه ځان له تخت جوړ کانړ او غزنین سلطان مسعود ته وسپاري ✤ له بعضو کتابونو د تواریخو نه داسي معلومیږي چه په هغه موده کښې یو ځو کان د سرو زرو خالصو په هغه ځاي کښې ختلي وُو نو سلطان په دغه سبب په ګډواله

په خزانه کښې نه وي جمع شوي * او په تاریخ د زین‌المآثر کښې راوړي دي چه اصل د هغې بتخانې چه سومنات په هغه ځای کښې وه تاریک وه او روښنائي يې د مرغلرو له رڼا نه وه چه هغه يې په فانوسونو کښې ایښي وي او شعلې يې ترخلې * او د سومنات په خزانه کښې همره واړه واړه بتان د سرو او د سپینو مونډلې شوي وو چه د خلقو په حساب کښې نه راتلل لکه حکیم سنائي ویلي دي *

د کعبې د سومنات بتان مردود شول په لاس د محمّد او د محمودٌ

له کعبې نه محمّد ورک کړ خلاف سومنات شه له محمودٌ پاک و صاف

حاصل دا دی چه سلطان د سومنات له کارَ بې غمٌ شه نو د راجه پرم دیو د سزا ورکولو نیت يې وکړ چه هغه لوي راجه د نهروالې د ښهر وه ځکه چه سلطان په قلابندي د سومنات مشغول وه نو هغه دېر کُمک د کفارو په طرف رالیکلي وه بلکه دوه درې زرَ مسلمانان د ده د لښکر له لاسَ شهیدان شوي وُو * او پس له فتحِ د سومنات نه راجه پرم‌دیو له نهروالې نه چه پایتخت د ګجرات وه وتښتیده او په قلا د کهندهه کښې يې ځان محکم کړ * او له سومنات نه په رچه د هغې قلا پوري شپږ ځلې کروه لار وه * او چه سلطان د هغې قلا حد ته ورسیده د يې لیدل چه دیرې اوبه له هغې قلا نه چاپېره دي او له هیڅ لوري لار د ور تللو نشته *

نوم سومنات وايي يا بواځي نات وايي دواړه برابر دي او نات په هندي ژبه کښ بزرګ ته وايي * او په بتخانه د سومنات کښ په هغو شپو ورځو کښ چه سپوږمۍ يا نمر به تندار ونيول نو زيات له دوه دري لکو سړو به خلق جمع کيدل او له لري لري ملکونو نه به نذرونه خلقو وله ور وړل او هغه واړه کلي چه حاکمانو د هندوستان په سومنات وقف کړي وو دوه زر يادېدل او دوه زره بامبڼانو به هميشه د سومنات عبادت کاوه او هره شپه به ئي د ګنګا په تازه اوبو لېناوه سره د دي چه د ګنګا او د سومنات په مينځ کښ شپږ سوه کروه لار وه * او يو زنځير د طلاؤ د درمسال له يو کوټ نه تر بل کوټ پوري زوړند کړي وه چه جرسونه به ئي په هغه زنځير کښ آويزان کړي وو هر کله چه هغه زنځير به ئي وخوځاوه او بامبڼانو به واوريده نو د عبادت دپاره به جمع کيدل * او پنځه سوه وينځي سرود کوي ګډيدونکي او دري سوه سړي يه سازنده په هغه بتخانه کښ هميشه اوسيدل اوخرڅونه اسپانونه يه ورته له وقف مال نه رسيدل * او دري سوه نايان به طيار د ږيرو خريلو او د سرونو خريلو دپاره ناست وو او اکثرو راجګانو به خپلي لونړه په طريقه د نذر د سومنات خدمت له هغي بتخاني ته آستولي * او دومره مرغلري د سلطان په خزانه کښ له دغي بتخاني نه داخلي شولي چه د هغو په سلمه حصه مرغلري د هيڅ يو بادشاه

که دا کار وکړم نو خلق به را ته محمود بُت خرڅوونکي وايي اوکه يُې مات کړم نو به راته محمود بُت ماتوونکي وايي نو بهتره دا دَه چه په دنيا او په آخرت راته بُت ماتوونکي وايي نه بُت خرڅوونکي + او نايده د نيکي عقيدې د سلطان داوَه چه هغَه بُت يُې مات کړ نو دومره مرغلري شاهانه يُې په کيږه کښ وختلي چه د ياميزانو له قيمت نه يو په سل زياتي شولي + او په حبيب السير کښ راوړي دي چه سومنات د هغَه بُت نوم دي چه هندوان هغَه له تولو بتانو نه لوي گڼړي ليکن د شيخ فريدالدين عطار له خبري په خلاف له دي معلوميږي لکه دا بيت پخپله شاهدي ورکوي +

د محمود لښکر په مينځ کښ د سومنات يو بُت ومونده چه نوم يُې لاره نات يعنی سوم د هغي بتخانې نوم دي او نات په کښ هغه بُت دي او کاتب د دي کړخو ته دا معلوميږي چه هغَه چه مؤرخانو ويلي دي هغَه خو رښتيا دي او د شيخ صاحب خبره هم مخالفه نه دَه ځکه چه دا لفظ مرکب دي له سوم او له نات نه او سوم نوم د يو راجه دي چه دا بت يُې جوړ کړي دي او نات نوم د هغَه بُت دي يا له سببَ د ډيرَ استعمالَ دواړه يو نوم شه او د هغَه بُت نوم ويلي شي بلکه د هغي بتخانې نوم بلکه د هغَه بنهر نوم هم ياديږي + نو که څوک د دغه بُت

او له امیرانو سره قلا ته ورننوت د ټولو آبادو تماشائي وکړله پس له هغه دننه په
قلا کښ یوه بتخانه وه چه ډیره اوږده او پلن ځاي ئې آباد کړي وه داسي چه شپږ پنځوس
خوئي ستني دي او ټولي جړاو کړي دي + او سومنات یو د کاڼړي بت وه پنځه ګز
اوږد چه دوه ګز په زمکه کښ وه او دري ګز کمر وه چه د سلطان نظر په بت
ولګیده یو ګرز ئې په لاس کښ وه په هسي شان ئې په مخ ووهه چه مخ ئې مات
کړ + پس له هغه ئې حکم وکړ دوه ټکړي ئې نرِ بیلي کړي غزنین ته ئې واستولي یوه ئې
په دُرشلي د جمعي د جماعت کښ ولګوله او بله ئې په ماڼړیُ د دلبار د بادشاهت
کښ واچوله تر شپږ سوو کالو پوري دغه ټکړي پرتي وي خلقو به لیدلي او دوه ټوټي
ئې نوري له سومنات نه جدا کړلي مکي او مدینې ته ئې ولیږلي چه په لیږ لوبو لارو
کښ ئې واچوي چه عام و خاص تر لیږېږي + او دا خبره ریښتیا ده چه په هغه
وقت چه سلطان سومنات ماتاوه نو یو ټولي د بامیزانو امیرانو ته عرض وکړ چه
که چري سلطان دا بُت نه ماتوي نو مونږ به دومره دومره زر په خزانه د سرکار کښ
داخل کړو + امیرانو دا خبره خوښه کړله سلطان ته ئې وویل چه د دي بُت په
ماتولو بُت پرستي له دي ملک نه ورکیږي او که دنیا پرِ واخستی شي نو د ډیرو
مسلمانانو به په بنه راشي + سلطان وفرمائیل چه ستاسو خبره ریښتیا ده مګر

وددولي د تلا سر ته وختل او په او چتو آوازونو ي تکبیرونه وویل ۰ هندوان هم په اتفاق سره ور ته ودریدل تمامه ورځ ئې سره جنګونه وکړل ۰ چه شپه شوه دواړه لښکرې په آرام شول بله ورځ ئې بیا په هغه شان مقدمه جوړه کړله د ښې پوري ئې خانونه ستړي کړل ډیر کفار ئې قتل کړل ۰ په دریمه ورځ ډیري لښکري د هندوستان له اطرافو راغلي بهر په میدان کښې ئې صفونه وتړل ۰ سلطان بعضي خلق قلابندۍ ته پریښود او باقي لاړل په میدان ئې جنګ ونښلاوه ۰ او له راتلو د امیرانو د پرم دیو او د دابشلیم نه بي طاقتي د مسلمانانو راغلله سلطان په ډیر خپګان یو کوټ ته لاړ شه او د ابوالحسن خرقاني خرقه ئې په لاس کښې ونیوه سوال د فتح او د بري ئې د خداي پاک په دربار کښې وکړ بیا په میان د صفونو کښې ننوتله ورغي حمله ئې په کفارو وکړله بري ئې نصیب شه او پنځه زره مشرکان ئې ووژل ۰ او د تلا په خلقو چه ډیره تنګه شوله جنګ ئې پریښود باموزان او خدمتګاران د سومنات چه څلور زره تنه په ټوټ د عمان دریاب غاړي ته لاړل او په کشتو کښې کښیناستل د سراندیپ جزیري په طرف روان شول مګر سلطان د دي خبري لا ورښې تکر کړي وه یو څو کشتۍ ئې په سپاهیانو ډکي د سراندیپ په لاري کښې دددولې وې هغو ته چه د کفارو دغه کشتۍ ښکاره شولي ور پسې ورغلل تول ئې په اوبو کښې ډوب کړل ۰ بیا سلطان له اولاد

او له امیرانو سره قلا ته ورننوت د ټولو آبادو تماشائي وکړله پس له هغه دننه په
قلا کښ یوه بتخانه وه چه ډیر اوږد او پلن ځاي ئې آباد کړي وه داسي چه شپږ پنځوس
څوئې ستني دي او ټولي جړاو کړي دي * او سومنات یو د کاڼړي بت وه پنځه ګز
اوږد چه دوه ګز په زمکه کښ وه او دري ګز ښکاره وه چه د سلطان نظر په بُت
ولګیده یو ګرز ئې په لاس کښ وه په هسي شان ئې په مخ ووهه چه مخ ئې مات
کړ * پس له هغه ئې حکم وکړ دوه ټکړي ئې نرِ بیلي کړي غزنین ته ئې واستولي یوه ئې
په دروازه د جمعي د جماعت کښ ولګوله او بله ئې په ماڼړي د دلبار د بادشاهت
کښ واچوله تر شپږ سوو کالو پوري دغه ټکړي پرتي وي خلقو به لیدلي او دوه ټوټي
ئې نوري له سومنات نه جدا کړلي مکي او مدیني ته ئې ولیږلي چه په لیر لویو لارو
کښ ئې واچوي چه عام و خاص ترِ تیریږي * او دا خبره رښتیا دَه چه په هغه
وقت چه سلطان سومنات ماتاوه نو یو ټولي د برهمنانو امیرانو ته عرض وکړ چه
که چري سلطان دا بُت نه ماتوي نو مونږ به دومره دومره زر په خزانه د سرکار کښ
داخل کړو * امیرانو دا خبره خوښه کړله سلطان ته ئې ووئیل چه د دي بُت په
ماتولو بُت پرستي له دي ملک نه ورکیږي او که دنیا بیرِ واخستی شي نو د ډیرو
مسلمانانو به په بنه راشي * سلطان وفرمائیل چه ستاسو خبره رښتیا دَه مګر

او له امیرانو سره قلا ته ورننوت د ټولو آبادو تماشائي وکړله پس له هغه دننه په قلا کښ یوه بتخانه وه چه ډیره اوږده او پلن ځاي ئې آباد کړي وه داسي چه شپږ پنځوس څوئې ستني وي او ټولي جړاو کړي وي * او سومنات یو د کاڼړي بت وه پنځه ګز اوږد چه دوه ګز په زمکه کښ وه او دري ګز ښکاره وه چه د سلطان نظر په بت ولګیده یو ګرز ئې په لاس کښ وه په هسي شان ئې په مخ ووهه چه مخ ئې مات کړ * پس له هغه ئې حکم وکړ دوه ټکړي ئې نزِ بیلي کړي غزنین ته ئې واستولي یوه ئې په دُرشلي د جمعي د جماعت کښ ولګوله او بله ئې په ماڼړۍ د دلبار د بادشاهت کښ واچوله تر شپږ سوو کالو پوري دغه ټکړي پرتي وي خلقو په لیدلي او دوه ټوټي ئې نوري له سومنات ته جدا کړلي مکي او مديني ته ئې ولیګلي چه په لیر لوبو لارو کښ ئې واچوي چه عام و خاص تر پښو لاندي تیریږي * او دا خبره رښتیا ده چه په هغه وقت چه سلطان سومنات ماتاوه نو یو ټولي د بامیانو امیرانو ته عرض وکړ چه که چري سلطان دا بت نه ماتوي نو مونږ یه دومره دومره زر په خزانه د سرکار کښ داخل کړو * امیرانو دا خبره خوښه کړله سلطان ته ئې ووېل چه د دي بت په ماتولو بت پرستي له دي ملک نه ورکیږي او که دنیا پرِ واخستي شي نو د ډیرو مسلمانانو به په ښه راشي * سلطان وفرمائیل چه ستاسو خبره رښتیا ده مګر

وددولي د تلا سر ته دخل او په اوچتو آوازونو يې تکبيرونه وويل ، هندوان هم
په اتفاق سره ور ته وددېدل تمامه ورځ يې سره جنګونه وکړل ، چه شپه شوه دواړه
لښکر په آرام مشغول بله ورځ يې بيا په هغه شان مقدمه جوړه کړله د شپې پورې
يې خاونه ستړي کړل ډېر کفار يې قتل کړل ، په دريمه ورځ ډېري لښکري د هندوستان
له اطرافو راغللي بهد په ميدان کښې يې صفونه وتړل ، سلطان بعضي خلق تلابنديز
ته پرېښو او باقي لاړل په ميدان يې جنګ ونښلاوه ، او له راتلو د اميرانو د پرمديو
او د دابشليم ته بې طاقتي د مسلمانانو راغلله سلطان په ډېر څپکان يو کوټ ته لاړ
شه او د ابوالحسن خرقاني خرقه يې په لاس کښې ونيوه سوال د فتح او د بري يې د
خدای پاک په دربار کښې وکړ بيا په ميان د صفونو کښې ځغلېده ورغی حمله يې په
[illegible] وکړله [illegible] يې نصيب شه او پنځه زره مشرکان يې ووژل ، او د تلا په خلقو
چې [illegible] شته چې يې پرېښو بامېزان او خدمتکاران د سومنات چه څلور زره تنه
په [illegible] ته لاړل او په کشتو کښې کښېناستل د سرانديپ جزيري
په [illegible] شي مګر [illegible] د دې خبري لا وړښې ذکر کړي وه يو څو کشتئ يې
په [illegible] د [illegible] په لاري کښې وددولي وې هغو ته چه د کفارو دغه کشتئ
[illegible] يې په اوبو کښې ډوب کړل ، بيا سلطان له اولادَ

اولد

بیابانَ تیر شول بنهر د اجمیر ته ورسیدل ‹› او راجه د هغَه ځاي له لاري په کناره
شوي وه سپاهیان د سلطان په قتل او په لوټ ولګیدل مګر مطلب د دوي ماتول
د سومنات وُو نو د قلا وهلو ته معطل نه شول لاړل وړاندِ لار یې ونیوله ‹› او په
هغَه مینځ کښِ ډیري قلا دګي چي له تورزنو سرو یه وله په مخ راغلي مګر وار یه یې
خطا شه بي هیڅ به يې حکم قبول کړ ‹› پس له هغَه نهروالي ته ورسیده او هغَه
ښهر يې خالِي وموند سلطان حکم وکړ چه ورشيِ له دغه ښهرَ ډیره ګیاه راوړيِ ‹›
چه هغوي لاړل ګیاه يې راوړله په تلوار روان شول زر په زر سومنات ته ورسیدل‹›
او هلته د دریاب په غاړه یوه لويه قلا يې ولیدله چه سرِي یه ګمان کاوه چه کُنګرِ
سرئ آسمان ته رسیږي او د دریاب اوبه يې له دیوال سره جنګیدلي ډیر کفار
يې په سر ناست وُو تماشه يې د مسلمانانو کوله او په اوچت آواز یه يې ویل چه
تا سو دلته سومنات راوستلي یئ چه په یو وار تول قتل کاندِ او خومره بتان چه
تا سو په هندوستان کښِ مات کړي دِي د هغو یدل به در نه واخلي ‹› بله ورځ چه
نمر را وخوت سلطان په لښکر حکم وکړ برابر د قلا بیخ له په جنګ ورغلل ‹› هندوانو
چه د دوي تورزن توب او زړه ورتیا ولیدل د قلا سر يې د غش لاسو له ویري پریښو
تول بتخانو ته ونښتیدل او له سومنات نه يې مددګاري وغوښتله ‹› مسلمانانو اندرپایي

شه قصه ئې د فتح د سومنات وکړه په لسه ورځ د شبقدر د مباشتې د خاصه لښکر سره او د دیرشو زرو سوارو غازیانو سره چه له ترکستان او له نورو ملکونو نه راغلي وُو سومنات ته روان شه ۰ او هغه یو لوي ښهر دي د عمان دریاب په غاړه باندِ او ځاي د عبادت د ټولو بامنبرانو او د کافرانو دي او سومنات هم په هغه ځاي کښ وه ۰ او په تواریخو کښ راوړي دي چه یو لوي بُت سومنات نامه خلقو په زمانه د پیغمبر آخرزمان علیه السلام کښ له کعبی را وکښلی وه د دغه ځاي له ئې یوړ او دغه ښهر ئې د هغه په نامه آباد کړ ۰ مګر د ورېنو بامنبرانو له کتابونو نه معلومیږي چه هغه کتابونه د اسلام له ظاهریدو نه په زر کاله ړنبي جوړ شوي دي چه دغه خبره صحیح نه ده بلکه دوي وائي چه دا بُت د کرشن د زماني دي چه هغه څلور زر کالَ شوي دي او بامنبرانو په د هغه عبادت کاوه او د بامنبرانو په قول سره کرشن هم په هغه ځاي کښ غیب شوي دي ۰ سلطان په نیمه لسه د رمضان چه پښتانه ور ته د روژي میاشت وائي د ملتان ښهر ته ورسیده ۰ چه وړاندِ ور ته یو بیابان بې اوبو بې کیاه ځنی له راغي نو سلطان حکم وکړ چه هر څوک دِ اوبه او کیاه د ځانونو سره بار کړي او پنځله سلطان د احتیاط دپاره شل زر اوښان خاصه له اوبو او له کیاه نه بار کړل ۰ چه له هغه سختت

خانونو سره ئې پيشکشونه راورل ٭ او يوسف قدر خان چه د تمام ترکستان بادشاه وه هغه هم استقبال ته راغي په ډيره مينه او په دوستئ ئې د سلطان سره ملاقات وشه ٭ سلطان بي شان خوشحال شه او مجلسونه ئې جوړ کړل اويو بل ته ئې پيشکشئ او سوغاتونه ورکړل او په صلح په رضا سره دواړه جدا شول ٭ علي تګين چه له دي حال خبر شه لاړ ونښتيده ٭ سلطان سړي ور پسي کړل را وئې نيوه بيرته ئې راوست ٭ او ځولانئ ئې په کښي واچولي د هندوستان په يوه قلا کښي ئې بند کړ او بيا په ئې غزنين ته کوچ وکړ ٭

او هم په دغه کال کښي يعني سن څلور سوه پنځه لس هجري کښي چا ورته عرض وکړ چه د هندوستان هندوان وايي چه روحونه له جسّو جدا شي نو ټول د سومنات خدمت له ځي او هلته هر يو روح چه لايق د هر يو بدن وي هغه ته حواله کيږي او بل اعتقاد د هندوانو دا دي چه کي او زياتي د درياب د سومنات د عبادت دپاره وي ٭ او باسبنړان وايي چه سومنات له هغه بتانو نه ډير خپه وه چه سلطان محمود مات کړي وه نو ځکه ئې مددکاري و نه کړله نه وبيا نو په سترګه رپول کښي به ئې ټول هلاک کړي وه ٭ او بله عقيده د دوي دا ده چه سومنات بادشاه دي او نور بتان ئې دروانيځان او څوکيداران دي ٭ سلطان چه له دي خبرو خبر

ور ولیکل صلح يې وکړله ＊سلطان له هغه ځایه کالینجر ته روان شه چې ننداپه کښې اوسیده ننداد دري سوه هاتیان د صلح دپاره را ولیګل ＊ چه سلطان هاتیان قبول کړل نوراجه ټول هاتیان بې له هاتیوانانو میدان ته ورخوشي کړل ＊ سلطان ترکانو ته حکم وکړ ټول يې ونیول پر دیاس سواره شول او د قلا خلق ور ته حیران پاتې شول ＊ او نندا په هندي ژبه د سلطان په مدح کښې شعر ووایه وله يې را ولیګه ＊ سلطان عالمانو د هندوستان او د عربو او د عجمو ته هغه شعر ښکاره کړ ټولو آفرین او شاباشي ور باندې ووایه ＊ سلطان ډیر خوشحال شه فرمان د حکومت د پنځه لس قلاوو چه یوه له هغو نه قلا د کالینجر وه سره د نورو پیشکشونو ورکړ ＊ نندا هم ډیر مالونه او مرغلري په خدمت کښې د سلطان حاضر کړل بیا سلطان په بیرته غزنین ته روان شه په خیر سره ور ورسید ＊

او په سن څلور سوه پنځه لس هجري کښې سان يې د لښکر آخست بې له هغه لښکر چه په اطرافو د ولایت کښې وه څلور پنځوس زره سواره او دري سوه هاتیان په قلم ولیکلي شول او د هغې دبدبې سره بلخ ته روان شه په دغه وقت کښې خلق د ماوراء النهر د علي تګین له لاسه فریاد وکړ سلطان په اراده د دفع د هغه د جیحون له سیند پوري وت سرداران د ماوراء النهر يې استقبال ته راغلل او لایق د خپلو

کښې روانه کړله او علي زوي د قدر سلجوقي ئې هلته کوتوال کړ بیا غزنین ته را وګرزیده *

او په سن څلور سو دولس هجري کښې نیت ئې د کشمیر وکړ او لوه کوټ ئې قلابند کړ یوه میاشت ئې هلته تیره کړله لیکن هغوي محکم وُو لاس پرِ د سلطان بر نه شه له هغه ځایَ په بیرته را وګرزیده لاهور ته لاړ شه هلته ئې لښکر یو خوا بل خوا د لوټ او د داړې دپاره واستاوه بې شانَ ډیر مالونه او اسبابونه ئې جمع کړل *او په دغه وارکښې چه ننسي د جیپال کمزوري شوي وه د اجمیر راجه له ور ولښتیده *سلطان لاړ لاهور ئې ونیو او یو معتبر امیر ته ئې وسپاره او نور اطراف د پنجاب ئې معتبرو امانتدارو سرو ته وسپارل او لاس ئې له لوټ ونیو د خلقو په پالنه او په زړه ساتنه ئې شروع وکړله او لښکر ئې په هغه وطن کښې پریښود خطبه ئې په خپله نامه جاري کړله په اول پسرلي کښې غـــزنین ته لاړ شه *

او په سن څلور سو دیارلس هجري کښې د لاهور په لار ئې اراده د ننډا د وطن وکړله چه د ګوالیار قلا ته ورسید مصلحت ئې داسې وکړ چه دا قلا حصاره کاندِ * لیس له څلورو ورځو راجه د هغې قلا هوښیار هوښیار قاصدان د پنځه دیرشو هاتیانو سره

د پيونو ولتول چه د کفارو د مکر او د ټګۍ وسواس ئې ورک شه نو لاس ئې
په لوټ پوري کړ قسم قسم او رنګ رنګ او شان شان څيزونه د مسلمانو سپاهيانو
په لاس کښ پريوتل + او هم په دغه اطرافو کښ په ير ځنګل کښ پنځه سو انيا
هاتيان ئې وموندل + او چه ورستو له پنجاب ئې خاطر جمعي نه وه نو په دغه کال
کښ هم په دغه کار ئې صبر وکړ غزنين ته بيرته روان شه + بيا هم په دغو ورځو
کښ خبر ورسيده چه خلقو د تيرات او د ناردين چه هندوستان له سرحدَ
حاضري کردفيْ د مسلمانيْ ئې په غاړه کښ نه وَه آچولي او سرئې له حکمَ د شريعت
د محمّد عليه السلام تار کړي دي اکثر په بت پرستيْ باندِ آخته دِي + سلطان د ځان
سره ترکانړان او آهنګران او سنګ تراشان روان کړل لښکر ئې ورپسِ اول تيرات
ته ورغي تيرات ئې لاندِ کړ او تيرات د هندوستان او د ترکستان په مينځ کښ يځ
ځاي دي ډيري ميوي په کښ کيږي + چه حاکم د هغَه ځاي اسلام قبول کړ نو
سلطان حاجب عَلي د ارسلان جاذب زوي ناردين ته واستاوه + هغَه چه ورغي هغَه
ځاي ئې فتحَ کړ ديغي ډيرونه مالونه په لاس ورغلل او هلته يو لويه بتخانه وَه
چه هغَه ئې ورانه کړله يو کاڼړي نقش دار په کښ را وخوت چه د هندوانو په اعتقاد
کښ د څلويښتو زرو کالو آباده وه + سلطان هغَه ځاي ته لاړ شه قلا ئې په

لښکر طیار کړ په ننداپسې هندوستان ته روان شه چه د چون اوبو ته ورسیده د جیپال ځمسي د پنجاب راجه چه ډېر خَلَ له سلطان نه تښتیدلې وه د نندا د کُمک دپاره په مینځ د لارې کښ د سلطان لښکر ته جنګ له را ورانږ شه لیکن اویه ډیرې وې هیڅوک پورې غاړه نه شه ورتللې ۰ ناګهانه اته تنَ غلامان خاصه د سلطان په یو وار له اوبو نه ور پورې وتل او تمام لښکر د جیپال د ځمسې ئې ګډوډ په مخ واخست ۰ د جیپال ځمسي د بو څو تنو سره وتښتیده او غلامان لاړل هلته نزدې یو ښهر وه هغه ئې لوټ کړ او بتخانې ئې ونړولې ۰ او هوښیارانو ته دِ معلومه وِي چه آته تنَ غوانان بادشاهي لښکر نه ځې ماتولې مګر دغه اته غلامان امیران وُو له چلَ لښکرَ سره پورې وتلې وُو څکه دومره لوې کارئې له لاسَ وشه ۰ له هغه ځايَ ئې لښکر په طرف د کالینجر روان کړ نندا د شپږ دیرش زرو سورو او پنځه څلویښت زرو پیادهٔ او د شپږ سوٌ څلویښتو هاتیانو سره د سلطان جنګ ته راووت ۰ سلطان په یوه لوړه وخوت او لښکر ئې د نندا له نظرَ تیر کړ چه ډیر ور ته ښکاره شه نو په راتللو خپلو پښیمان شه سر ئې په سجده کیښو او له خدايَ ئې سوال د فتح او د برې وکړ ۰ ناګهانه په شپه کښ د نندا په زړه باندې یو لوې هیبت راغې ټول مالونه اسبابونه ئې پریښول له ویرې لاړ وتښتیده ۰ بله ورځ بادشاه سور شه اول ئې ځایونه

يُ د هغو صحرانشينو دپاره ورکړي چه قافله به يُ وهله بيت الله ته يُ واستاوه او ډير خلق اشراف او خواران او غريبانان لوي وايه ور سره روان شول ‌ پس له ډيرو منزلونو نه يو بيابان ته ورسيد چه هغه ځاي ته ويد وايه شي ‌ صحرانشينو په يخواني دستور لار ونيوله قافله يُ ورانګ تللو ته نه پريښودله ‌ قاضي ابومحمد ناصحي په طريقه د صلحي پنځه زره اشرفيُ ور وليکلي او ور ته يُ وويل چه دا واخلئ او مونږ ته لار پريږدئ ‌ مګر د صحرانشينو چه حماد بن عُلي نامه يُ لرله صلح يُ ونه کړله او لښکر يُ تيار کړ په نيت د داړي قافلي ته را روان شه ناګهانه په قافله کښ يو ترک غلام وه چه په غشو ويشتو کښ ډير مرفي وه يو غشي يُ د حماد په طرف ګذار کړ هغه يُ برابر په سر ولګيده سر د لاندې له آس کوز ولويد صحرانشينو في الحال کالبوت د هغه واخست او لاړل وتښتيدل ‌ قاضي ابومحمد ناصحي په بيغم زړه حج له لاړ شه او روغ جوړ سلامت بيرته را وګرزيده ‌

هم په دغه کال کښ يعني په سن څلور سو دولس هجري کښ سلطان واوريده چه د هندوستان کفارو د قنوج په راجه باندې چه کوره نامه لري ډير بد ويلي دي او ملامت کړي يُ دي چه تا ولي د سلطان محمود حکم قبول کړ او ننداد کالنجر راجه ورليي دروغي کوره يُ مړ کړ ‌ سلطان چه دا خبره واوريده له ننډو وارونو نه يُ زيات

لښکر طيار کړ په ننداپسی هندوستان ته روان شه چه د چون اوبو ته ورسيده د جيپال ځمسي د پنجاب راجه چه ډير خلق له سلطان نه تښتيدلي وه د نندا د کمک دپاره په مينځ د لاري کښې د سلطان لښکر ته جنګ له را ورانډِ شه ليکن اويه ډيري وي هيڅوک پوري غاړه نه شه ورتللي * ناګهانه اته تنَ غلامان خاصه د سلطان په يو وار له اوبو نه ور پوري وتل او تمام لښکر د جيپال د ځمسي ئي ګډوډ په مخ واخست *
د جيپال ځمسي د بو څو تنو سره وتښتيده او غلامان لاړل هلته نزدي يو ښهر وه هغه ئي لوټ کړ او بتخاني ئي ونړولي * او هوښياړانو ته دِ معلومه وِي چه اته تنَ غوانان بادشاهي لښکر نه شي ماتولي مګر دغه اته غلامان اميران وُو له چلَ لښکرَ سره پوري وتلي وُو ځکه دوسره لوي کار ئي له لاس وشه * له هغه ځاي نه لښکر په طرف د کاليځر روان کړ نندا د شپږ ديرش زرو سورو او پنځه څلويښت زرو پياده ؤ او د شپږ سوو څلويښتو هاتيانو سره د سلطان جنګ ته راووت * سلطان په يوه لوړه وخوت او لښکر ئي د نندا له نظرَ تير کړ چه ډير ور ته ښکاره شه نو په راتللو خپلو پښيمان شه سر ئي په سجده کيښو او له خداي ئي سوال د فتح او د بري وکړ * ناګهانه په شپه کښې د نندا په زړه باندِ يو لوي هيبت راغي تول مالونه اسبابونه ئي پريښول له ويري لاړ وتښتيده * بله ورځ بادشاه سور شه اول ئي ځايونه

ئې د هغو صحرانشينو دپاره ورکړي چه قافله به ئې وهله بيت الله ته ئې واستاوه او ډير خلق اشراف او خوارات او غريبانات لوي وايه ور سره روان شول ۰ پس له ډيرو منزلونو نه يو بيابان ته ورسيد چه هغه ځاي ته فيد وايه شي ۰ صحرانشينو په بخوايني دستور لار ونيوله قافله ئې وراندِ تللو ته نه پريښودله ۰ قاضي ابومحمد ناصحي په طريقه د صلحي پنځه زر اشرفئ ور وليګلي او ور ته ئې ووېل چه دا واخلئ او مونږ ته لار پريږدئ ۰ مګر د صحرانشينو چه حماد بن علي نامه ئې لرله صلح ئې رنه کړله او لښکر ئې طيار کړ په نيت د داړي قافلي ته را روان شه ناګهانه په قافله کښ يو ترک غلام وه چه په غشو ويشتو کښ ډير مړني وه يو غشي ئې د حماد په طرف ګذار کړ هغه ئې برابر په سر ولګيده سر د کلاند له آس کوز ولويد صحرانشينو في الحال کالبوت د هغه واخست او لار وتښتيدل ۰ قاضي ابومحمد ناصحي په بيغم زړه حج له لار شه او روغ جوړ سلامت بيرته را وګرزيده ۰

هم په دغه کال کښ يعني په سن څلور سو دولس هجري کښ سلطان واوريده چه د هندوستان ګنار د قنوج په راجه باندِ چه کوره نامه لري ډير بد ويلي دي او ملامت کړي ئې دي چه ولي د سلطان محمود حکم قبول کړ او ننداد کالنجر راجه ورلي درغي کوره ئې مړ کړ ۰ سلطان چه دا خبره واوريده له ډيرو وارونو نه ئې زيات

لوي مجلس جوړ کړ او حکم ئې وکړ چه دا فتحنامه دِ په منبرونو باندِ د خلقو د وړاندِ ولوستلي شي چه خلق په پوره توګه کېدلو د نشانونو د اسلام او په نرېدلو د بیخ د کفر خبر شي او شکر د خداي ادا کړي او شاباشي په سلطان محمودِ غزنوِي باندِ ډېر ډېر واېي او دعا د فتحِ او د برِي په حق د ده کښ وکاندِ ＊او په هغه ورځ په بغداد کښ دومره خوشحالي وَه چه لکه د اختر په ورځ څوک خوشحالي کوِي او دا کار مناسب وه څکه چه لکه چه اصحابو به په ښهرونو د عربو او د عجمو او د روم او د شام کښ یو کار کاوه هغه شان معامله سلطان په هندوستان کښ وکړله دنیا او آخرت ئې خپل آباد کړل ＊

او په سن څلور سَو دولس هجرِي کښ عالمانو او صالحانو په اتفاق سره سلطان ته عرض وکړ و ئې وېل چه ډېره مده شوي دَه چه سلطان هر کال د هندوستان غزا له د ثواب دپاره ځي او په هغه ځاي کښ بناني د اسلام ظاهروِي لیکن د بیت الله په لار کښ صحرانشینو او قرامطهٔ غلبه کړي دَه او د خلیفګانو عباسیهٔ قوت نشته نو مسلمانانو د حج له ثواب بې‌نصیبت پاتې شول که د دغو غور وشي نو ډېر به ښه وِي ＊سلطان د دوِي خبره قبوله کړه ابومحمّد ناصحِي چه مشر د قاضیانو د ملکونو د سلطان وه هغه ئې سردار د حاجیانو کړ او دیرش زر اشرفئ

چه تماشگير ئې په ليدلو حيران پاتې كيږي + او چه هغه مسجد ئې آبادكړ نو هسې فرشونه او فانوسونه او اسبابونه د بنايسْت ئې په كښ ولګول چه خوش طبعو خوانانو په نادي د آسمان نامه ورته ويله + او په ګوانډ د هغه جماعت كښ ئې يوه مدرسه آباده كړله او د هر علم كتابونه ئې په كښ جمع كړل او ډير كلي ئې په هغه جماعت او مدرسه باندې وقف كړل + او چه سلطان په مينه سره دا كار وكړ نو هر امير په خپل خپل حد كښ د جماعتونو او د مدرسو او د مسافرخانو بنا وكړله په لږه موده كښ همره آباديۍ وشوې چه په شمار كښ نه راتلې + او په دغه سفر كښ سلطان له هندوستان د ټمريۍ په شان يو مارغه راوړي وه چه چا به زهر په طعام كښ ګډ كړل او مجلس له به ئې هغه طعام راوړه نو دغه مارغه به بي‌آرامه لړزيده او اوښي به ئې بي‌اختيار تويېدلې هغه ئې د ډيرو پيشكشو سره خليفه اَلْقَادِرُ بِالله ته د بغداد واستاوه + او يو كاڼړي ئې په هندوستان كښ موندلي وه كه هر څو به سري زخمي شه چه هغه كاڼړي به ئې په اوبو كښ وسولاوه او په هغه پرهر به ئې پورې كړ في‌الحال به په جوړيدو راغې +

او په سن څلور سو لس هجري كښ يوه فتحنامه چه په كښ واره فتحې د هندوستان ليكلي وې بغداد ته ئې وليګله + خليفه د بغداد دغه كاغذ د رسيدو په ورځ

ئې په لاس کړل هسې جنګ ئې د مسلمانانو سره وکړ چه ټول قتل شول سلطان
د لوټ مالونه په تصرف کښې راوړل في الحال د چندپال قلا ته روان شه
چندپال په ځېل ځان کښې طاقت د جنګ و نه لیده سره د عیال او د مال غرونو
ته وتښتیده سلطان هغه باقي مالونه د قلا په تصرف کښې راوړل انبارونه د غلو
ئې په سپاهیانو باندې وویشل بیا د چندرای کافر ځای ته ئې نیت د تلو وکړ هغه
هم د چندپال هسې کار وکړ ځانونه ئې د مالونه اسبابونو سره غرونو ته وتښتول لاړ
شه او د چندرای یو هاتي وه چه سلطان ډېر ځل په ډېر ډېر قیمت سره د هغه
ستې کوله خو لاس له نه ورتله او په دغه موده کښې یوه شپه هغه هاتي بغیر له
هاتي وان د چندرای له اردو نه را وتښتیده برابر د سلطان خیمې له راغې سلطان
حکم وکړ هاتي ئې ونیوه او ډېره خوشحالي ئې وکړله او دغه هاتي نوم ئې خداداد کېښود
بیا چه سلطان غزنین ته ورسیده لوټ د قنوج د سفر ئې وشماره شل زره اشرفۍ
او زر زره روپۍ وختلې او پنځوس زره وینځې مریونه او درې سوه پنځوس هاتیان حساب
شول او بغیر له دې نور اسبابونه هم ډېر وو بیا سلطان حکم وکړ چه یو مسجدِ
جامع چه پښتانه ور ته د جمعې جماعت وایې له سنګِ مرمرو نه چه چرته چارګوټیز
سنګِ مرمر وي او چرته شپږګوټیز وي او چرته اته ګوټیز وي او چرته ګرد وي آباد کړي

یاقوتو جړاو کړي وَه چه په تول کښ څلور سَو مثقالَ وَه چه هغَه بُت ئي مات کړ
اته زرَ او دري سَو مثقالَ طلا ورنه وختلي + او د سپینو زرو بتان لَوي واړه له
سلونه زيات وُو چه تول ئي مات کړل سل اوښان تر بار شول پس له هغَه په بتوله
دوائيږ ئي اور پوري کړ چه شل ورځي تیري شوي نو له هغَه ځايَ ئي کوچ وکړ + او
په تاریخ الیمني کښ ئي راوړي دي چه سلطان واوریده چه په دغه اطراف کښ په غاړه
د ابو لويي لويي اوره تلا دي جوړ په هغَه طرف روان شه + او حاکم د هغو قلاؤ به
د دهلي راجه له تلنک درکاوه چه له دي حالَ خبر شه لاړ ولنبتیده + سلطان
هغو قلاؤ ته ورغي تماشا ئي د ملکونو کوله ناګهانه سترګي ئي په یوه بتخانه ولګیدلي
چه هغَه د هندواو په اعتقاد کښ د څلورو زرو کالو مدي آباد وَه + په هغو
قلاؤ او په بتخانو کښ هر څه چه مسلمانانو وموندل هغَه ئي واخستل او په رکاب
د سلطان کښ د منج قلا ته روان شول + او په هغَه قلا کښ ډیر تورزن څوانان وُو
او خرڅ ئي د ډیر عمر په کښ آچولي وه + سلطان بخته لس ورځي هغَه خلق قلابند
کړل او لار د تلو او دراتلو ئي ورته پري نه ښوله + چه هغوي پوه شول چه سلطان
به په زور دا قلا فتح کړي نو څوک له قلا را کوز شول خپل ځانونه ئي وژلل او ځا
د بنځو او د خامند سره ځانونه په اور کښ واچول او ځا دروازه پرانستله ځجرونه جدردنه

ډير

تیره کړله چه په دې اطرافو کښ یو ښهر دی چه نوم یې متهره یادیږي کرشن باسدیو
چه هندوان ئې پیغمبر بولي په هغه ښهر کښ پیدا شوی دی او په آبادیٔ کښ د دغه
ښهر په شان چا په دنیا کښ نه دي لیدلي او دومره عجائب غرائب په کښ دي
چه د هغه صفت څوک نه شي بیانولي ۰ سلطان په اوریدو د دې بیان في الحال هغه
مکان ته روان شه ۰ او هغه ښهر اګر که تعلق د دهلي د راجه سره لاره لیکن سلطان
ته هیڅوک دپاره د منع کولو راوړاندې نه شه بې غم بې وسواس مقصود ته ورسیده
او هغه ښهر یې لوټ کړ او بتخانې د ښهر او د اطوافو یې وسیزلي او بتان ئې مات
کړل او مال یې ډیر په لاس راغی او له لیدو د هغه آبادو هسې حیران پاتې شه
چه یو خط یې اشرافو او غنیانو د غزنین ته لیکه نو دا عبادت یې په کښ ولیکه
ـ چه په دې ښهر کښ زر مانړیٔ آسمان بنیادي دي او اکثري له سنګ مرمرو
آبادي دي او بتخانې خو په کښ هم ره ډیرې دي چه له شمار تیرې دي او که څوک
غواړي چه داسې ودانې طیار کاندې نو چه لک اشرفیٔ په مړنو استاذانو باندې خرچ ولګوي
نو په دوه سو کاله عمر کښ به یې تمام کړي ۰ واېې چه پنځه بتان یې په کښ د سو چه
طلاؤ وموندل چه په سترګو کښ د هغو یې یاقوت لګولي وو چه هغه یاقوت واړه په
پنځوس زر روپو ارزیدل بل یو بت وه د طلاؤ چه په هغه کښ یې یوه تخته د شنو

حیران شه او وویریده په زړه کښې یې هغه و نیت دَ جنګ و نه کړ او ځوتي سري
یې د سلطان په خدمت کښې واستول ویل یې چه حکم د بادشاه م قبول دي او
ځنله په مینه او په اخلاص دلویږ ورو خاموسره له قلا نه راکوز شه او په قول
د حبیب‌السیر اسلام یې هم راوړ + او سلطان پس له دري ورځو د میرټ قلا ته
روان شه + راجه د هغې قلا چه هروت نامه یې لرله هغه قلا یې معتبرو خلقوته
وسپارله او ځنله یو طرف ته بهر لاړ شه + او خلق په قلا کښې طاقت د ټنګیدلو
و نه لید لس زَرَ دارَ زر زَرَ درمَ چه دوه لکَ او پنځوس زرَ روپۍ کیږي او دیرش
هاتیان یې پیښکش کړل امان یې ومونډ + یا سلطان له هغه مکانَ قلا د مهاون
ته روان شه چه هغه قلا په غاړه د اوبو د جون اباده دَه + او راجه د هغې قلا په
کلچند نامه بللې شه په هاتي سور شه نیت یې وکړ چه له اوبو نه پورې وزي +
لښکر د سلطان ور پسې روان شه چه سپاهیان نزدې ور ورسیدل هغه ظالم
کم‌بخت خنجر له تیکې راوکښې اول یې سر د ښځې او د زوي پریکړ بیا یې په سینې
ځپلې باندې ووهه ځان خپل یې دوزخ ته روان کړ + او په هغه ځاي کښې سلطان
له دومره لوټ په لاس ورغې چه حساب یې څوک نه شي کولی یواځې اتیا څو په کښې لوي
لوي هاتیان وُو + چه سلطان له دغه کارَ ږدزکارَ وزکار شه چا یې له غوږو مبارکو

له ورکړ او ابوبکر قهستاني ئې د هغه سره ملګري کړ ۰ او چه سلطان د خوارزم له مهم نه دزګار شه نو مدن د ژمي وَه حکم ئې وکړ چه دا ژمي په بُست کښ تیروُو چه سپاهیان په آرام شي ۰

او په سن خلور سَو نه هجري کښ اول پسرلي چه شي او ورځي برابري وي او سپاهیان د شینکو او د ګلونو په میدان د صحرا او د باغونو و دریدلي وو او هوا صافي او نسیم خوشبويَ فلا د غنچو فتح کړي وي سلطان د لکو سورو او د شل زرَ پیادهٔ سره چه په نیت د غزا له ترکستانَ او له ماوراءالنهرَ او له خراسان او له نورو ملکونو نه راغلي وُو قنوّج ته روان شه چه هغَه ملک پس له ګشتاسپَ تر دغه وقتَ پوري هیڅ بیګانه له په لاس ته وه ورغلي او له غزنین نه تر هغَه ځايَ پوري د دری میاشتو لار وَه او له اووهٔ لویو دریابونو نه پوري وتل وُو ۰ چه سلطان د کشمیر په حد ورغي حاکم د کشمیر ډیر څیزونه لایق د پیشکشيُ سلطان ته پیشکش کړل او په سر د لښکر کښ د خدمت دپاره روان شه ۰ چه سپاهیانو د اسلام ډیر منزلونو قطعَ کړل او قِنوّج ته ورسیدل یوه لویه محکمه مضبوطه قلا ئې ولیدله چه تماشګیر به ګمان کاوه چه ګنګرِ سر ئې آسمان ته رسیدلي دي ۰ او راجه د هغَه ځاي کوره نوم لاره چه دا لښکر ئې ولیده له ډول او له دبدبي د دوي نه

او په سن څلور سوَ اووه هجري کښې پر تولي د لونډيانو د خوارزم په بادشاه حمله وکړله د يې واژه ٭ سلطان له غزنين نه بلخ ته لاړ او له هغه ځايَ خوارزم ته روان شه چه په سرحد د خوارزم کښې خضر بندر ته ورسيده نو محمدٌ طائي يې د لښکر مشرکړ وړاندِ يې واستاده ٭ هر کله چه د غزنين خلق ډيره ويَوله او د سحر په مانځه وددبدل خمارتاش چه سردار د خوارزميانو وه د ليوني له ځايَ را پورته شه او په دوي باندِ يې تاخت وکړ ډير خلق يې تر ووژلل او مات يې کړ ٭ سلطان پر لوي فوځ د خاصه غلامانو په هغه تولي ليي مقرر کړ چه ور ورسيدل خمارتاش يې ونيو او په خدمت د سلطان کښې يې حاضر کړ ٭ چه سلطان هزار اسپ تلا ته ورسيده سپاهيان د خوارزم جمع شول او په بې وار د سلطان په لښکر راغلل سخت جنګ يې وکړ ليکن ددي مات شول او البتګين بخاري چه سردار د دوي وه په بند کښې پريوت ٭ چه سلطان خوارزم ته لاړ شه اول يې تاتلان د ابوالعباس په قصاص کړل بيا يې امير التونتاش ته خطاب د خوارزم د بادشاهۍ ورکړ او ولايت د خوارزم او اورګند يې د اطرافو سره ور ته دباخښنه ٭ او چه له هغه ځايَ بلخ ته راغي ولايت د هرات يې امير مسعود زوي ځپل ته ورکړ او محمدّ بن حسين زوزني يې د هغه وکيل کړ ور سره يې وليګه ٭ او ولايت د ګورګان يې امير محمدّ ندي

هغه خلق تنګ شول امان ئې وغوښت قلا ئې امانته سلامته سلطان ته وسپارله ✤ سلطان هغه قلا په خپل تصرف کښې کړله او يو معتبر سړي ئې په کښې کښېناوه د جيپال په نمسي پسي هغه دري د کشمير ته لاړ شه او د جيپال نمسي له هغه ځايه بل خوا وزغليده ✤ سلطان په هغه دره کښې ډېر مال لوټ کړ او ډېر خلق ئې د مسلماني سره آشنا کړل بيا غزنين ته را وګرزيده ✤

او په سن څلور سوَ شپږ هجري کښې سلطان تدبير د ملک د کشمير وکړ او چه ورغي هغه سخته قلا د لوهکوټ ئې حصاره کړله ليکن چه موده ډېره تيره شوله او واوري زياتي ووريدلي او يخني غلبه شوله او قلا له کمک له اندازي بهر راغي نو قلابندي ئې پرېښوله او غزنين ته بيرته روان شه ✤ او په دغه سفر کښې ئې لار ورکه کړله يو هسي ځاي ته ورسيدل چه ټول صحرا له اوبو ډک وه هر خوا چه به تلل بغير له اوبو ئې څه نه ليدل او په دغه اوبو ډېر سړي هلاک شول او دا اول يو نظر وه چه په سفرونو د هندوستان کښې لښکر ته د سلطان ورسيده پس له ځو ورځو په ډېرو چلونو او مشقتونو له هغه اوبو خلاص شول غزنين ته لاړل ✤

هم په دغه کال ابوالعباس مامون د خوارزم بادشاه سلطان ته دپاره د خور د دوستي کاغذ وکښنه ✤ سلطان کاغذ قبول کړ خور خپله ئې خوارزم ته وليګله ✤

الحمد لله رب العٰلمين والصلوٰة والسلام علیٰ رسوله محمّد و آله اجمعين + نور هيڅ نه
وُو + سلطان او نور منشيان واره حيران پاتې شول او په مطلب يې هيڅ قدر نه
پوهيدل + بيا هريو آيت د قرآن مجيد يې ولوست او تفسير د هغه يې وکوت ليکن
هيڅ مراد يې معلوم نه شه + خواجه ابوبکر قهستاني چه لا د دومره مرتبې خاوند
نه وه زړورتيا وکړله و ئې ويل چه سلطان مهربان هاتيان د هغه وطن د ورانولو
دپاره ياد کړي وُو نو بنايي چه خليفه جواب د هغې خبرې اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ
بِأَصْحَابِ الْفِيلِ ليکلي وي ـــ معنیٰ دا ده (اي نه وينې ته چه څنګه کارکړي وه رب
ستا د يارانو د هاتيانو سره) سلطان په اوريدو د دې خبرې له هيبتَ بې هوش پريوت
چه يو ساعت پس په خود شه ډير يې وژړل او قاصد ته يې عذر وکړ او د ډيرو پيشکشو
سره يې بيرته وليکه او ابوبکر له يې خلعت خاص ورکړ او مرتبې د اميرئ ته يې ورساوه +
او په سن څلورسو څلور هجري کښ سلطان لښکر نندونې قلا ته چه په غره د
بالنات کښ ده وکښه + او په دغه مده کښ انندپال مړ شه زوي د هغه چه نمسي
د جيپال وه او حاکم د لاهور وه طاقت د جنګ يې نه لاره څه قدر خوانان د
جنګ يې په نندونه کښ پريښول او دې يو درې ته د کشمير لاړ شه + سلطان
هغه حصار حصار کړ او د سورې کولو او د قلا د نړولو اسباب يې طياد کړ ليکن

بدختي بنهرونه د خراسان چه ستاسو د غلامانو په لاس کښې دي هغه هم دي خلقو
ته پریښودي ږشي خلیفه چه طاقت د جنګ نه لاره خواه مخواه ئي دغه خبره قبوله
کړله ؛ بیل وار بیا سلطان کاغذ ور ولیکه او په کښې ئي کښلي وُو چه سمرقند
هم ما ته پریږده ؛ خلیفه وُو چه پناه غواړم په خدای پاک سره له دي کار نه
دا کار زه نه کوم او که ته ئي بغیر له حکمَ ځما نیت د آخستو کوي نو دا تبول
جهان به در باندِ ولړزوم ؛ سلطان په دي خبره ډیر خپه شه او و ئي ویل چه
غواړي چه د زرګونو هاتیانو سره درشم او بادشاهي ستاسو ګډه وډه کړم او کلي
بنهرونه واړه ونړوم او خاوره ئي په هاتیانو بار کړي غزنین ته راوړم ؛ قاصد دا
خبره واوریدله بیا روان شه چه څو مده تیره شوله بیا راغي او کاغذ ئي راوړه ؛
سلطان کښیناست او غلامانو ور ته صفونه جوړ کړل او لوي لوي هاتیان ئي په دروازه
د دلبار کښې ودرول او لښکر ئي طیار کړ په دغه ساعت کښ قاصد کاغذ ځهر کړي
په تخت کیښو او و ئي ویل چه امیرالمؤمنین وایي چه جواب ستا دا دي ؛ خواجه
ابونصر زوزني چه امیر د دفتر د خطونو وه کاغذ ئي وسپړود په کښ ئي ولیده
چه اول لیکلي وُو داسي بسم الله الرّحمٰن الرّحیم بیا په بله کرښه کښ ئي دا حرفونه
جدا جدا کښلي وُو په دي شان سره ال م ال م او ور پسي دا رنګ خط وه

حال پوهه شوله هیبت واخستله وسواس ئې پیدا شه په زړه کښې ئې دا فکر وکړ چه
څښتن ته به زما دښمنانو د دروغو تهمت جوړ کړي وي او زه به ئې ورته تورن
کړي بیم نو د څښتن له ویرې یو څو ویښتې ئې د خان سره کړې له کوره ووتله لاړله
چرته په یو کوټ کښې پټه شوله * او غلام چه شاه‌ساد غزنین ته ورساوه نو کور ته
لاړ شه څه کوري چه دروازه بنده ده او په کور کښې څوک نشته یو ساعت حیران
ودریده بیا چه دروازه ئې لرې کړله ودان کور ورته وران ښکاره شه نه ئې بي‌بي
ولیدله او نه ورته خدمتګاره ښکاره شوله * غلام له ګاونډیانو نه پوښتنه وکړله
هغو ورته د کاغذ حال ووایه غلام یو ساعت چپه ودریده فریادونه اسویلي ئې
کول او ویل ئې چه ما خو هیڅ ویلي نه دي بیا ورغی بي‌بي ئې راوستله اوډېر عذرونه
ئې ورته وکړل * او په اول مجلس کښې چه شاه‌سارئې سلطان ته په خدمت کښې
حاضر کړ نو یارانو خوش‌طبعو تمام احوال د غلام سلطان ته بیان کړ * سلطان
وخندل او وئې ویل چه هرڅوک چه له اندازې نه تیرې قدم ږدي او د لویوخلقو
سره بي‌ادبي کوي نو هم دغه ئې سزا ده * بیا سلطان هم په دغه ورځو کښې یو مکتوب
خلیفه عباسي ته چه خطاب ئې اَلْقَادِرُ بِاللّٰه وُه وکښته مطلب په کښې دا وه چه
اکثر ښهرونه د خراسان څمونږ په تصرف کښې دي نو امید دي چه هغه بعضي

وويل چه انند پال خبر شه ځما نيت د تهانيسر د تالودي بنائي چه ته يو څو تن معتبران خپل خوښ له لښکر سره کړي چه ستا د وطن په خلقو زور زياتي و نه شي ❊ انند پال ډېره د خيرخواهئ څخه په تلوار سره سياستيا لويه طيار کړله او سوداګر ئې د وطن راوبلل حکم ئې ورته واوراوه چه اوره او غوړي تيل غالله لونبي لړکي ترڅه اسباب چه د بادشاه په لښکر کښ پکاريږي ويريا ورکوي هيڅ پيسه کاسيره له چانه مه غواړئ ❊ او دوه زر سواره ئې د ورور سره خدمت د بادشاه ته واستول او عريضه ئې ورته وکښله چه زه بنده او خدمتګار يم هر څه حکم چه وي ورته طيار يم مګر عرض م دا دي چه تهانيسر د دي وطن د خلقو د عبادت ځاي دي او که په دين د مسلمانانو کښ د بتانو ماتول ثواب وي نو هغه کار خود په ماتولو د نګرکوټ د بتانو کښ شوي دي اوس که بادشاه د خپلو راتللو ځيا واخلي او هر کال په هغو خلقو باندي قلنګ مقرر کړي او په خير سره بيرته وګرزي نو زه به هم په شکرانه د دي خبري چه ځما سوال قبول شي پنځوس هاتيان او رنګ رنګ پيشکشي هر کال په دلبار کښ حاضروم ❊ سلطان جواب ورکړ چه په دين د مسلمانانو کښ ثواب دا دي چه ځاي د عبادت د کفارو خوک وران کاندي نو هغه به په دوزخ د قيامت ډيره نيکي ومومي او نيت ځما دا دي چه بتان بالکل د هندستان

پیغامبر علیه السلام پوري يي ځایَ خبري کړي دي مګر په ولایت د غور کښ هيڅا
څه نه ډيږ ويلي له دې سببَ هغه وطن په ټولو ملکونو بانډ فخر کوي * او هم
په دغه کال کښ بل وار له غزنين نه ملتان ته لاړ شه او هغه ځاي يي په
زور او په غلبه سره فتح کړ او له قرامطهؤ او له ملحدانو نه يي قتل کړل
او د ډيرو يي لښي او لاسونه پريکړل او داوود بن نصير يي ژوندي په بند کښ
راوست او د ځپل ځان سره يي غزنين ته بوت او په قلا د غور کښ يي بند کړ
هم په هغه ځاي کښ مړ شه *

او په سن څلور سَو دوه هجري کښ دوباره مينه د غزا يي پيدا شوله او تفانيسر
ته چه له ملکونو د هندوستان نه دي روان شه ځکه چه چا ورته وويل چه
تهانيسر په نزد د هندوانو په عزت کښ بلا تشبيه د مکي معظمي په شان دي
او په هغه کښ يوه بتخانه دَه يخواني چه ډير بتان په کښ هندوانو جوړ کړي
دي او غټ بت په هغو کښ جګ سوم نامه لري او اعتقاد د کلاو دا دي چه
له کوم وقتَ چه دنيا پيدا شوي دَه دا بُت ور سره پيدا شوي دي *ارچه سلطان
د پنجاب ملک ته ورسيده نو په سبب د دي خبري چه انندپال سره ئي وعده
کړي وَه چه زه به تا ته ضرر نه رسوم ورښي يي سړي ور واستاوه او ورته يي

خلقو زړونه يې ښنه کړل ٭

او په سن څلور سَو يو کال هجري کښ يې لښکر غور ته ووليسته ٭ او محمّد بنِ سوري د هغه وطن حاکم د لسو زرو سورو سره سلطان له د جنګ دپاره را ووت او له وقتَ د ماښختلو نه تر نيمي ورځي پوري جنګ وشه غوريانو ډيره ځوانمردي وکړله ٭ سلطان چه توره د دوي وليدله نو حکم يې وکړ لښکر يې په تګي سره بيرته روان کړ ٭ د غوريانو ګمان وشه چه ګني سلطان مات شه له خندق را ووتل در پسې روان شول ٭ چه د صحرا ميَنځ ته ورسيدل نو سلطان حکم وکړ سپاهيانو په بيرته بير وکړ غوريان يې ډير قتل کړل او محمّد بنِ سوري يې بنديوان سلطان له روان کړ مګر هغه له ډيرَ غمَ عمي د زهرو ښخانه د سلطان په مجلس کښ مړ شه او هغه وطن د سلطان په تصرف کښ داخل شه ٭

او په تاریخ يميني کښ ليکلي دي چه حاکمانو د غور او رعيّت خلقو د هغه ځاي تر هغه وقتَ پوري دين د اسلام نه ره قبول کړي ٭ مګر صاحب د طبقات ناصري او مبارک شاه روذبي چه تاریخ د بادشاهانو د غور يې په نظم کښ ليکلي دي ويلي دي چه غوريان په زمانه د خلافت د اميرالمؤمنين علي بنِ ابي طالب رضي الله عنه کښ مسلمانان شوي وو او په زمانه د بني اميه ؤ کښ تمامو مسلمانانو په خيلخانه د

کارکښ به یُ فایده د دوارو جهانو کنړله . له دې سبب په هغه تلا کښې دومره مال جمع شوي وه چه د یو پادشاه په خزانه کښ دا قدر مال نه وه جمع شوي .اوچه هغه تلا له تورزو خزانانو خالي وه او بغیر له بامبنړانو په کښ بل څوک نه وُو نو څه څواه د هغو په زړونو کښ هیبت پریوت اوچیغې د امان غوښتو یُ آسمان ته ورسولې او په دریمه ورځ یُ دروازه د تلا لرې کړله او بامبنړان راغلل سلطان ته یُ سلام وکړ . بیا سلطان د یو څو تنو خاصانو سره تلا ته ننوت اووه لک اشرفيُ او اته سوَ مَن لوښي د سرو سپینو او دوه سوَ مَن طلا خالص او دوه زرّ مَن سرچه سپین زر او شل مَن قسم قسم جواهر چه له زماني دکهیم نه جمع شوي . او په تصرف د دیوانیانو کښ راغلې دُو واړه سلطان ته ورسیدل پس هغه سلطان غزنین ته وګرزیده .

په سن څلور سوَ هجري کښ سلطان له بهره بهر ووت اوڅو تختَ د سرو . سپینو یُ په دربار کښ کیښودل او هغه لوټونه چه په هغه سفر کښ په ورغلي وُو هغه یُ صحرا ته وریستل او سړي د ښهر او د کلو د تماشي دپاره جمع شول . او تر دري ورځو پورې دغه مخلوق جمع وه قسم قسم کیدل او هغه مالُ یُ په صالحانو او عاجزانو باندِ وویشه او د

شلکي او توري او خنجرونه ئې وچلول او ډیره سرې او آسونه ئې پرلیستل ترهسي حه
پوري چه په سترګه رډول کښ ئې خلور زرَ تنَ شهیدان کړل بلکه دي حد له خبره
راغله چه سلطان دي کار ته چوړ شه چه له لاسَ د کهکریانو له میدانَ په ډډه
شي او جنګ موقوف کړي * ناګهانه د اندپال هاتي له آوازونو د توپکو او له بوبونو
د دارو ته ووېرېده لاړ ونښتیده لښکرو ګمان وکړ چه ګُنډِ راجګانو ټینښته وکړه چوړ
تولو ماتي ګډه کړله * عبد الله طائيَ د پنځهَ شپږو زرو سورو د عربو سره او ارسلان
جاذب د دوهَ زرو سورو د ترکو او د پښتنو او د خلجیانو سره دوه شپي او دوده ورځي
په دنبال د ماتي لاړل اته زرَ کافران ئې قتل کړل اور ډېرش هاتیان او ډېر لوټ
ئې راوړ د سلطان دوړاندِ حاضر شول * سلطان پس له هغَه د دین نبوي د محکمتیا
دپاره نیت د غزا د کنارو د نګرکوټ او د ورانولو د بتخانې د هغو وکړ روان شه *
او په هغَه مداه کښ هغَه قلا د بهیم په قلا باندِ مشهوره وَه چه سلطان ور ورسیده
حکم ئې د هغې قلا د قلابندۍ ورکړ اوګیر چاپیر د اطرافو خلق ئې ډېر ووژلل *
او هغَه قلا په زمانه د راجه بهیم کښ په سر د یو غره باندِ ودانه شوي وَه او هندوانو
به هغې قلا ته مخزن الاصنام یعنی خزانه د بتانو نوم وایه * او راجګانو د ملکونو
به سره او سپین او مرغلري او لعلونه او مرجان او نور مالونه ورلیګل او په دغه

وار لښکر له هغه وار نه زيات جمع شه او د انندپال سره پرشاي صحرا ته د پښاور راغلل + څلوېښت ورځي په مقابله د سلطان کښې پربوتل ليکن هيڅوک له دواړو لښکرو نه جنګ ته نه وړاندې کيده مګر لښکر د کفارو ورځ په ورځ زياتيده او له هر طرف نه به وله خلق را چليده ترهسي حده پوري چه کفار د ګهکړهم په دغه سفر کښې ور سره ملګري شول + او هره سپي يې په جنګ کښې کوله چه کافر ښځو به کالي خرڅول او خرڅ به يې په څښتنانو پيسي راليګه دپاره د دي چه نارينه يې جنګ ته وزګاروي + او هغه ښځه چه لاس به يې نه رسيده شغې به چرخه وريشله او مزدوري به يې کوله او خرڅ به يې لښکر ته را آستاره + هرکله چه سلطان پوه شه چه دا وار کفار په ډير اخلاص سره ځان د جنګ دپاره طياروي نو دوه وُ طرفو د لښکر ته يې خندق وکنوده او جنګ ته يې ځان برابر کړ + يا زر تنه غش لاستي يې وړاندې وليکل هغو به چلونه او په حيله سره لښکر د کفارو ګرم کړ او په ځان پسي يې روان کړ ترهسي حده پوري چه جېل لښکر ته يې لښکر د کفارو نږدي کړ + او مسلمانان په ښه اتفاق سره په دفع کولو د کفارو مشغول شول + او سره د ډيرَ احتياطَ د سلطان ديرش زره لښکر له کفارو د ګهکړ په عين مقدمه کښې په خندقونو د دواړو طرفو را داوېيدل او په ميخ د سورو کښې را ننوتل او

هندوستانَ خبر را ورسیده چه آبسار مرتد شه بیا اصلي دین حپل ته وگرزیده
او هغه میدان ور ته خالي ښکاره شه کارداران د سلطان ئې ټول وشړل *
سلطان ضیا له واکي د قصد میدان د هندوستان ته وگرزولي کوچ په کوچ ئې منزل
قطع کاوه روان شه او هغه امیران چه جاگیرونه د هندوستان ئې خواره ورسړي ئې
ولیکل آبسار ئې وبیو دربار ته د سلطان ئې حاضر کړ * سلطان څلور لک
روپیۍ نزِ واخستلي تگین خزانچي ته ئې وسپارلي او دي ئې بند کړ چه هم هلته کښ
مړ شه * او سلطان په دغه وقت کښ غزنین ته را وگرزیده په بیچاونړه د آرام ئې
تکیه ووهله په قرار شه *
بیا په سن دري سوَ نه نوي هجري کښ په نیت د جزا ورکولو د اندپال چه په مقدمه
د ملتان کښ ئې بي ادبي کړي وه لښکر ئې جمع کړ هندوستان ته ئې کوچ وکړ * اندپال
چه په دي حال خبر شه نو له راجگانو د هندوستان نه ئې مدد وغوښت * هر
کله چه هندوانو ته د مسلمانانو سره جنگ ثواب ښکاریده نو خواه مخواه ټول راجگان
جمع شول نز هسي حدَ پوري چه راجه د اوجین او د گوالیار او د کالینجر او د قنوج
اوَد دهلي او د اجمیر کل واړه په مددگاریۍ راغلل او فوځونه فوځونه لښکر ئې
پنجاب ته را روان کړ * او لکه چه په زمانه د امیر سبکتگین کښ جمع شوي وه دا

شه لیکن ماده د ژمي وَه یخني له حدَ زیاته وَه طاقت د هیچا نه کیده د اکثرو امیرانو
داخوښه وَه چه په ماتي پسې نه تللي مګر چه سلطان ټچیله په کوشش کښې وه
نو خواه مخواه دوه منزل ور پسې لاړل په دریمه شپه په یو بیابان کښې دیره شول
درسته شپه واوره ووریدله او یخنيُ له حدَ زیات زور وکړ ـ او د سلطان دپاره
ئې یوه لویه خیمه ودروله او منقلونه ئې ډیر کیښول خیمه ئې په هسي شان ګرمه
کړله چه اکثر خلق له ګرمئ نه زړوکو غوړزلو ته جوړ شول + په دغه ساعت کښې
دلچک په دروازه د خیمي را ننوت سلطان ورته په ټوقو سره ووِ چه دلچک لاړ شه
بهر یخنئ ته ووایه چه ولي مري او له ډیري سردئ نه دِ خانکندن دي میږ خو
دلته له ګرمئ نه جامو وکښلو ته طیار یو + دلچک في الحال بهر لاړ شه او دستي
دننه راغي عرض ئې وکړ چه زیري د بادشاه م یخنئ ته درساده شغه وائي چه اګر
چه لاس م په سلطان او د سلطان په امیرانو نه رسیږي لیکن د نورو نوکرانو
په هسي خدمت وکړم چه صبا له به سلطان او امیران او سرداران د آسونو
خدمت ټچیله کوي او له ما نه به شیخ تقصیر په دغه خدمتګاريُ کښې د نه دیئ+
سلطان اګر که ظاهر دغه خبره په ټوقو تیره کړله مګر په زړه کښې له دغه نیتَ
پښیمان شه قصد ئې دبیرته ګرزیدلو وکړ + ناګهانه هم په دغه شپه کښې له

په میمنه مقرر کړ او جعفر تګین ئې په میسره ودراوه * بیا دواړو لښکرو لکه د دوو دریابو د پاړبې یو بل ته مخ کړ * او له شور د آسونو ته ئې کور د زمکي په زلزله کړ * او په ګردونو د سمونو د آسونو ئې میدان د آسمان خړ کړ * او اور د جنګ او د جدل ئې په باد د حملو بل کړ * له هغه لوري ایلک خان پخپله په جنګ مشغول شه * له دې خوا نه سلطان له آس نه کوز شه او پاک پروردګار ته ئې سر په سجده کېښود او لاس د دعا او د زارۍ ئې پورته وښول او تکیه ئې په مهربانۍ د مهربان خدای وکړه او په هاتي مست باندې سور شه او حمله ئې په لښکر د ایلک خان یوړله * ناګهانه هاتي د سلطان نښانچي د ایلک خان په خرطوم ونیوه او په زمکه ئې وویشت پس له هغه په صف د ترکانو ورغې ډېر ئې هلاک کړل * هر کله چه غازیانو ولیده چه سلطان پخپله په خان په میدان کښې د جنګ ورکډه شه جوړ بې اختیار له یو وار ور وزغلېدل او توري ئې وویستلې ډېر ترکان ئې په هغه زمان قتل کړل * قدر خان وار خطا له خانه نا امیده په چلونو هنرونو له جنګ ولښتېد او چه له اوبو د جیحون پوري وت نو هیچرته ئې دمه ونه کړله چه خوخپل وطن ته ورسیده او دوباره ئې د خراسان خیال په خاطر کښې را نه ووړ * او په تاریخ یمیني کښې لیکلي دي چه سلطان پس له تښتې د ایلک خان په ماتي پسې روان

حال خبر شه له هراتَ غزنین ته لاړ شه دپاره د دي چه تخت د بادشاهت وساتي * او يو توپي د غتانو د خراسان په سبب د ډيري مدی د جدائي د سلطان د ايلک خان سره جوړښت وکړ * هر کله چه سلطان غزنين ته ورسيده نويو لښکر لکه د خلقو د محشرئ جمع کړ او بلخ ته وکوچيده * او جعفرتګين چه له راتللو د سلطان نه خبر شه له بلخَ ترمذ ته وتښتيده * او ارسلان جاذب په حکم د سلطان په سياوُش تګين پسي له هراتَ ووت ماوراءالنهر ته روان شه * ايلک خان له قدرخان بادشاه د چين نه مدد وغوښت قدرخان د پنځه‌وُ زرو تنو سره د ايلک خان په مدد روان شه ايلک خان په مددکاري د قدرخان له جيحون سيندَ را پوري‌وت * او چه دولس کروه لاړ بلخ ته پاتي شوله لښکر د سلطان د دوي سره مقابل شه * سلطان ټوله صفونه د لښکر برابر کړل د مينځ صف ئي کشر ورور ته چه امير نصيرالدين حاکم د جرجان وه او ابونصر فريغون ته او عبدالله طائي ته وسپاره * او د ښي لاس صف ئي التونتاش حاجب ته حواله کړ * او د کينړ طرف صف ئي ارسلان جاذب او نورو اميرانو د پښتنو ته مقرر کړ * او پنځه سَو هاتيان د غزونو په شان ئي د صفونو د وړاندِ تلاکړل * او له هغه طرفَ ايلک خان ټوله په مينځ صف کښ د لښکر و دريده او قدرخان ئي

په میمنه مقرر کړ او جعفرتکین ئې په میسره ودراوه ⁺ بیا دواړو لښکرو لکه د دوو دریابو د پاړې یو بل ته مخ کړ ⁺ او له شور د آسونو نه ئې کور د زمکې په زلزله کړ او په کردونو د سمونو د آسونو ئې میدان د آسمان خړ کړ ⁺ او اور د جنګ او د جدل ئې په باد د حملو بل کړ ⁺ له هغه لوري ایلک خان پخپله په جنګ مشغول شه ⁺ له دې خوا نه سلطان له آس نه کوز شه او پاک پروردګار ته ئې سر په سجده کېښود او لاس د دعا او د زارۍ ئې پورته وینول او تکیه ئې په مهربانۍ د مهربان خداي وکړه او په هاتي مست بانډ سور شه او حمله ئې په لښکر د ایلک خان یوړله ⁺ ناګهانه هاتي د سلطان نشان چي د ایلک خان په خرطوم ونیوه او په زمکه ئې وویشت پس له هغه په صف د ترکانو ورغي ډیر ئې هلاک کړل ⁺ هر کله چه غازیانو ولیده چه سلطان پخپله په خان په میدان کښ د جنګ ورګډ شه جوړ بې اختیار له یو وار ور ورغلېدل او توري ئې ووېستلې ډیر ترکان ئې په هغه زمان قتل کړل ⁺ قدر خان وار خطا له خانه ناامیده په چلونو هنرونو له جنګ ولښتېد او چه له اوبو د جیحون پوري وت نو شېځرته ئې دمه ونه کړله چه خو خپل وطن ته ورسېده او دوباره ئې د خراسان خیال په خاطر کښ را نه وړ ⁺ او په تاریخ یمیني کښ لیکلي دي چه سلطان پس له تښتې د ایلک خان په ماتي پسي روان

حال خبر شه له هراتَ غزنین ته لار شه دپاره د دي چه تخت د بادشاهت وساتي * او یو توبلي د غتیانو د خراسان په سبب د ډیري مدی د جدائیٔ د سلطان د ایلک خان سره جوړښت وکړ * هر کله چه سلطان غزنین ته ورسیده نویو لښکر لکه د خلقو د محشریٔ جمع کړ او بلخ ته وکوچیده * او جعفرتګین چه له راتللو د سلطان نه خبر شه له بلخ ترمذ ته وتښتیده * او ارسلان حاذب په حکم د سلطان په سیاوُش تګین پسي له هراتَ ووت ماوراءالنهر ته روان شه * ایلک خان له قدرخان بادشاه د چین نه مدد وغوښت قدرخان د پنځهوُ زرو تنو سره د ایلک خان په مدد روان شه ایلک خان په مددکاریٔ د قدرخان له جیحون سیندَ را پوري وت * او چه دولس کروَه لاد بلخ ته پاتی شوله لښکر د سلطان د دوي سره مقابل شه * سلطان پنځله صفونه د لښکر برابر کړل د مینځ صف یٔي کښر وروړ ته چه امیر نصیرالدین حاکم د جرجان وه او ابونصر فریغون ته او عبدالله طایٔي ته وسپاره * او د ښي لاس صف یٔي التونتاش حاجب ته حواله کړ * او د کینړ طرف صف یٔي ارسلان جاذب او نورو امیرانو د پښتنو ته مقرر کړ * او پنځه سَوَ هاتیاَن د غزونو په شان یٔي د صفونو د ورانډ تلاکړل * او له هغه طرفَ ایلک خان پنځله په مینځ صف کښِ د لښکر و دریده او قدرخان یٔي

او له مذهبَ د ملحدانو توبه کاریم * سلطان اووه ورځي ملتان قلابند کړي
وه مګر په دغه صلحُ ئي وعده محکمه کړه امیر د ملتان له ئي امان ورکړ *
بیا چه په طباري د بیرته راګرزیدو کښ شه ناګهانه قاصدان د ارسلان جاذب
چه حاکم د هرات وه را ورسیدل او له لښکرَ د ایلک خان ئي سلطان خبر
کړ سلطان له ډیري تلواري ممم د بیهندي سکهپال ته چه زوي د یو راجه
د هندوستان وه او په لاس د ابوعلي سمجوري کښ مسلمان شوي وه او هغه
ته په ئي آب سار هم وایه وسپاره اودي غزنین ته لاړ شه *
او بیان د احوال د ایلک خان دا شان وه چه د سلطان او د ایلک خان ډیرمله
لکه حق د خسروالي او د زوم والي هغه رنګ دوستي وه تر هسي حدَ پوري
چه لکه وړښي هم ذکر شوي دي چه په واسطه د فساد د مفسدانو او په سبب
د سعي د غمازانو هغه دوستي په دښمنئِ بدله شوله * او چه ساطان په لوري
د ملتان روان شه او په میدان د خراسان کښ پهلوانان پاتي نه شول ایلک خان
فرصت وموند او نیت ئي د لاندِ کولو د هغه و لایت وکړ سیاوش تګین چه سردار
د لښکر وه د ډیر لښکر سره ئي خراسان ته ولیکه او جعفرتګین ئي په شان د
کوتوال په دارالملک د بلخ باندِ مقررکړ * ارسلان جاذب حاکم د هرات په دي

زین الاخبار نه معلومیږي چه له دي وجهي چه دې به نه شي هغه لار يې پرېښو له په بله لار روان شه + او انندپال زوي د جیپال په لار کښ و دریده لښکر د سلطان يې منع کاوه لیکن شکست يې وخوړ لار کشمیر ته وتښتیده + او په تاریخ د الفي کښ وایي چه هغه وقت چه ابوالفتح له راتلو د سلطان نه خبر شه انندپال ته يې سړي واستاوه او کُمک يې تر وغوښت + انندپال د ابوالفتح په مددګارۍ له لاهور نه پښاور ته لار شه او څو تنه امیران يې د سلطان لاري ته ولیګل دپاره د دي چه سلطان د ملتان له تلو منع کانړ + بادشاه له ډیر قهر حکم د دړانو د بنهروټو د انندپال په لښکر وکړ لښکر په یو وار حمله وکړه امیران د انندپال يې په پښاور کښ خراب تراب کړل او انندپال چه په دي حال خبردار شه لار وتښتیده او لښکر د سلطان په هغه شان ورپسې وه چه په حدود د سودري کښ غاړي د چناب سیند ته ورسیده هلته کښ وویریده کشمیر ته يې مخه وکړله + سلطان په هغه پسې لار نه شه په طرف د ملتان په خپل مطلب پسي روان شه + ابوالفتح چه ولیدل چه د هند راجګانو هیڅ ونه کړي شول جوړ خانونه يې قلابند کړل او زاري او عذرونه يې څرګند کړل او وعده يې وکړه چه کال په کال به شل زره اشرفۍ په خدمت کښ رسوم او حکمونه د شریعت به جاري کړم

کړ ، چه بجیراو لار د تښتېدلو نه موندله زر ئې خنجر له کمربند څخه راکړو او له ډېرې کینې ئې په سینې خپلې باندې ووهه ، غازیان ورد ورسیدل سر ئې ترې پرې کړ سلطان ته ئې روان کړ او له تېغ بې دریغ ئې سرونه د ملکرو د بجیراو په زمکه ازاد کړل او قتل ئې عظیم وکړ ، اینا هاتیان او مریونه او ډېر لوټ او مالونه ئې په لاس راغلل او هغه ښهر سره د اطرافو د سلطان حکم قبول کړ او دې سره د فتح او د بري غزنین ته وګرزیده ،

بیا په سن درې سوه شپږ نوي هجري کښ سلطان نیت د لاندې کولو د ملتان وکړ مشرانو د لښکر ته ئې حکم واوراوه چه شیخ حمید لودي امیر د ملتان به د امیر سبکتګین سره اخلاص کاوه او له خدمت به ئې ځان نه خلاصاوه او پس له هغه د هغه منسي ابوالفتح چه نوم ئې داوُد زوي د نصیر زوي د شیخ حمید یو له ملحدانو نه وه په اول حال کښ ئې په طریقه د پلار نیکه عمل کاوه او خپل ځان ئې له نوکرانو د سلطان نه شماره لیکن په هغه وقت کښ چه لښکر د پادشاه په بهاطنه مشغول وه له ده نه خبرې بدې اوریدلې شوې دې کارونه ناکارئې له لاسه شروع شوی دُو ، سلطان په دغه کال کښ دپاره د څه مصلحت بې پروائي وکړه هیڅ ئې و نه ویل او بل کال ئې نیت د بدل د اخستو وکړ ، له روایت د

غلورمه ورځ یې حکم واوراوه چه نن به بادشاهي جنګ وي زور زلمي نوکر چاکر د ټول خاونه سنبال کړي چه غزاته په میدان کښ حاضر شي + او راجه بجیراو چه په دي مصلحت خبر شه تښتي ته لار شه او په بتانو نسکور پریوت او مدد یې ور نه وغوښت او هندوان یې په دباو او په دبدبه له ښهرَ بهر راوکښل او د جنګ په ځاي کښ ودریدل + او امیران د اسلام په تورو او په نیزو لاس وواهه او په یو وار یې په کفارو حمله وکړه له وقتَ د څاښتَ تر زوالَ پوري یې سره جنګ وکړ او له هرَ طرفَ ډیري د مړو ودریدل او سیلابونه د وینو وبهیدل مګر بنه د کمر زورتیا په یو طرف کښ ظاهره نه شوه .. سلطان په هغه زمان لاس په دلبار د رحمٰن ونیول او روح پاک د پیغامبر علیه السلام یې رودبار کړ او بچیله یې د لښکر په مینځ باندِ حمله وکړله لښکر یې د کفارو مات کړ او بجیراو یې تالابند کړ او حکم یې د خندق د ډکولو ورکړ + هر کله چه خندق یې په کاڼرو او په لرګو او په غنو او په بوټو ډکیدو ته نزدي کړ بجیراو حیران شه لښکر یې په جنګ پرېښود او دي سره د یو څو کسانو خاصانو له تولا نه راکوز شه او یو ځنګل ته د ځنګلونو د اباسیند د غاړي وتښتیده + چه سلطان په دغه حال خبر شه نو یو فوج یې د توردنو سپاهیانو ورپسي واستاوه هم په هغه ځنګل کښ یې ګیر

کړل * دستور د هندوانو دا دي چه هر راجه چه دوه ځل له مسلمانانو نه مات
شي يا بندي شي دوباره لايق د بادشاهت نه وِي او ګناه ئې بي له اوره نه پاکيږي
نو په دي سبب سره جيپال ځان زوي چه انندپال نامه ئې وه بادشاه ئې کړ او
ځان ئې په اور کښ واچاوه اوونې سيزه * او سلطان محمود په مياشت د حسن حسين
کښ په سن دري سَو دری نوي هجري کښ بيا سيستان ته لاړ شه او حنيف ئې
په دغه وار غزنين ته راوست * بيا ئې مينه د هندوستان په زړه کښ پيدا شوه
په سن دري سَو پنځه نوي هجري کښ په طرف د هغه ښهرچه بهاطيه نوم لري
لاړ شه اوچه له حدودو د ملتان نه تير شه نو په هغه ځاي کښ ئې ډيره وکړله *
او د هغه ښهر همره لويه قلاوه چه کرګس مارغه ئې سر ته نه شه رسيدي او
چاپيره ترِ هسي خندق وه چه د نظرباز نظر ئې په بيخ نه شه لګيدي * نوم د هغه
ځاي د راجه بجي راو وه او په سبب د ډيرو سپاهيانو او د هاتيانو هسي مغرور
وه چه نه ئې د سردارانو د امير سبکتګين پروا لرله او نه ئې د جيپال فرمانبرداري
کوله * هر کله چه سلطان محمو دپاره د دفع د ده لښکر هغه طرف ته راکښه ده
سپاهيان ځپل جمع کړل او په برابر د لښکر د اسلام ئې صفونه جوړ کړل * دواړو
لښکرو سره دري ورځي جنګ وکړ ليکن سلطان ته مسلمانان عاجز ښکاره شول په

او سلطان محمود په سبب د دي خبري چه ديلي يې ده چه هر کله چه د بادشاهت
له کار د بار وزګار شم نو اکثر عمر به هندوستان ته ځم او غزا به کوم په مباشت
دوهمي اختر کښي په سن دري سوه نوي هجري کښي له غزنين نه يې اراده د
هندوستان وکړه د لسو زرو سورو سره پېښاور ته راغي + او جيپال د دو لسو زرو
سورو او د ديرشو زرو پياده وو او د دري سوو هاتيانو سره راغي جنګ يې طيار کړ
په ورځ د کل په اتمه د مباشتي د محرم په سن دري سوه دوه نوي
هجري کښي جنګ يې ونښلاوه + سلطان محمود ډيره مړانه وکړه بري يې نصيب
شه نوم يې په غازي سره مشهور شه + او جيپال يې د پنځلسو سرو سره چه څوک
يې خامن وه او څوک يې خپلوان وو په بند راوست او پنځه زره هندوان يې قتل
کړل او ډير لوټونه يې راوړل + او د هغه بنديانو د غاړي نه يې شپاړس حميلونه
وکښل چه په هندي ژبه کښي هغه حميل ته مالا وايي او خلقو د هر يو حميل
[illegible] ايا زر اشرفۍ قيمت مقرر کړ + بيا سلطان له پېښاور نه په پخنده ورغي
[illegible] يې [illegible] د حکم لاندي کړه او هر کله چه موده د پسرلي شوه نو جيپال او
[illegible] يې [illegible] له [illegible] د [illegible] وکړل قيد يې خلاص کړ + او ډير
[illegible] يې [illegible] ورکړل [illegible] غزنين ته يې له خانه سره روان

کړل

وه په طریقه د قاصدیٔ ایلک خان نه دپاره د نکاح کولو د یوې شاهزادګیٔ واستاوه او قسم قسم یاقوت او لعلونه قیمتناک او حمیلونه د مرغلرو او هاګیٔ د عنبرو او لوښي د سرو او د سپینو زرو ډک په خوشبویو او په کافورو او نوري پیشکشیٔ د هندوستان او ونې د عودو او نوري آباداري او هاتیان جنګیان جوړکړي سنبال کړي چه سانرګي د تماشګیر یې په لیدلو خوږي کیدلي او راهداو اسونه پر دپاس زرین زینونه یې ورسره کړل * چه امام ابوالطیب د ترکستان وطن نه ورسیده خلقو دهاته وطن چه اکثر په زمانه د ایلک خان مسلمانان شوي وو د ده ډیر تعظیم او عزت او مدار وکړ * او دي په اورکند کښ تر هغه معطل وه چه څو ایلک خان اجازه د ملاقات وکړله * بیا هغه مرغلره چه په دریاب د ترکستان کښ ورپیي موجودا شوي وه هغه یې سره د قیمتي اسبابونو د هغه وطن او سره د سوچه سرو سپینو او سره د وبنځو د ختا او د پیغلو د ختن او سره د قاقمو او د سمورو او سره د نورو پیشکشو په خدمت د بادشاه کښ حاضره کړله * پس له هغه ډیر عمر په مینځ د سلطان او د ایلک خان کښ دوستي او محبت زیاتیدل * تر هغه پوري چه په سبب د بد نظر نکیدو د زماني او په سعي د غمازانو دوستي او محبت د دوي په دښمنیٔ او په عداوت بدل شول لکه چه زر به ذکر د دي خبري وشي انشاء الله تعالی *

بخارا ته لاړ شه او عبدالملک يې سره د تابعانو قتل کړ بند يې وکښي او دولت
د خيلخاني د سامان چه اته دپاسَ شپږ شلي کالَ وه آخر ته ورسيده + او سلطان
محمود په حکومت د بلخ او د خراسان مشغول شه + هرکله چه دبدبه د بادشاهت
دده اطرافو د جهان ته ورسيدله نو خليفه د بغداد چه مشهور په اَلْقَادِرُ بِاللّٰهِ
عباسي وه يو خلعت د ډير قيمت يې سلطان ته ولېګه چه په دغه شان خلعت
هيڅ يو بادشاه بل بادشاه ته نه وه لېګلي + بيا په سن دري سوَ نوي هجري کښې
د مياني په مياشت کښې له بلخَ هرات ته لاړ شه او له هراتَ سيستان ته
ورغي + او حنيف بنِ احمد د هغه ځاي حاکم يې له حکمَ لاندِ کړ بيا غزنين ته
ورسيده + او هم په دغه مُده کښې هندوستان ته روان شه او هلته يې يو څو
قلا ونيولي او بيا بېرته راوګرزيده + په هسي شان يې بېچاونږه دَ عدل په فرلخه
زمکه وغوړوله چه محبت دده دَ هرچا په زړونو کښې پيدا شه + او ايلک خان چه
ماوراالنّهر په يووار دَ سامان له اولادَ خالي کړ نو خطَ دَ فتح اود بري يې سلطان
ته واستاوه او مبارکي يې دَ بادشاهيِ دَ خراسان ورته ووېله + په دي سبب سره
د دواړو بادشاهانو په مينځ کښې دوستيِ محکمه پيدا شوله + او سلطانِ محمود هم
ابوالطيب لره چه نوم يې سهل وه زوي د سليمانِ معلوکي وه او امام دَ علمِ حديث

امیر منصور ولګیده دې ئې د خان وزیر کړ او د سلطان د خبرې ئې هیڅ خواب ور
نه کړ + سلطانِ محمود په طرف د نیشاپور روان شه او بکتوزن چه په نیّت دده پوه
شه نو په بل طرف لاړ شه او عریضه د حال خپل ئې بخارا ته و لیږله +
امیر منصور په کبر او په نادانئِ او په غرور د ځوانئِ مست وه لښکر ئې جمع کړ
خراسان ته را روان شه او نو سرخس پورې ئې هیڅ ځنډ ونه کړله + سلطان
اګر که ښه پوهیده چه امیرِ منصور دده سره برابري کولي نه شي لیکن
له پیغور او له بدنامئِ دَ نمک حرامئِ نه ویریده نو نیشاپور ئې ورته پریښود او مرغاب
ته لاړ شه + ناګهانه بکتوزن په مصلحت د فائق تګې ئې وکړه امیر منصور ئې ونیو او
سلائي ئې په سترګو کښې ورواهه روند ئې کړ او ورکې ورور دَ دغه چه عبدالملک نامه
ئې لوله په تخت ئې کښیناوه او ځیله له سلطانَ ویریده مرو ته وتښتیده + سلطان
ورپسي روان شه مرو ته ورسیده + بکتوزن او فائق کار نالائق اختیار کړ جنګ
ئې له سلطانَ سره په میدان کښې ونښلاوه مګر بري دَ سلطان نصیب شه +
او فائق عبدالملک له ځان سره کړ بخارا ته لاړ شه + او بکتوزن نیشاپور ته
وتښتیده ځو وقتَ پس دَ تښتیدلي لښکر د جمع کولو دپاره بخارا ته بیا ورغې + ناګهانه
په دغه مُده کښې فائق ناجوړه شه او مړ شه او ایلک خان له کاشغر نه

په دغه مُده کښ په حکم د امیرِ سبکتګین سره بتخانه دَ هندوانو چه په غاره د سودري دابو وَه ورانه ئي کړله او بابرې د طالع خپل ئې د طالع د خاوند دَ دین سره وکړ+ او په اول کال دَ بادشاهۍِ دده کښ یو کان د سرو زرو په شکل د ونې په سیستان کښ له زمکي نه رابښکاره شه او هر قدر چه به چا کنوده خالص زر به ترِراوتل او کبر چاپیر ئې دري ګز ځاي نیولي وه بیا په زمانه د سلطانِ مسعود کښ هغه کان په سبب د زلزلې ورک شه + بیا چه سلطان دَ ورور له مِنځ نه وزګار شه نوځ ئې بلخ ته کړ او په سبب ددي چه امیرالامرائي د خراسان منصب دده وَه بکتوزن ته سپارلي شيي وَه یو قاصد ئې بخارا ته امیر منصور له ورولیګه او خپګان خپل ئې ور ته ظاهر کړ+ هغه خواب ورکړ چه امارت د بلخ او دَ ترمِذ او د هرات مِ تاله درکړي دي لیکن بکتوزن یو خیرخواه سړي دي بې هیڅ ئې باڅل او له نوکرۍِ نه وکښل مناسب نه دي + سلطان ابوالحسن د جمو ئې د ډیرو پیشکشو سره بخارا ته واستاوه او امیر منصور ته ئې وویل چه امید دي چه چینه د دوستۍِ او د اخلاص به په خاورو او په خاشاک د بې پروائۍ نه خړپړې او حقونه ځما او ځما دَ پلار چه ستاسو په ذمه دَو هغه به نه ضایع کوئې دپاره ددي چه مزي د دوستۍ و نه شلیږي او بناد متابعت و نه نړیږي + ابوالحسن دَ جمو چه بخارا ته ورسید

زابلي سلطان محمود هسي درياب دي چه ئي غاره چرته نه ده چا ليدلی
مرغلره تِرِ را نه غلله په لاس کښس درياب ښه دي ګکله کرِم له بخري خپلي

په شپه د عاشوري په سن دري سوَ اوه پنځوس هجري کښس پيدا شوي دي ÷ او جوجاني په منهاج السّراج کتاب کښس کښلي دِي چه طالع د سلطانِ محمود د طالع دَ خاوند د ملّت د اسلام سره موافق وه ÷ او يو ساعت ورښي له پيدا کيدلو دده نه امير سبکتګين په خوب کښس وليدل چه دَدوي له نغرِي نه يوه لويه ونه پورته شوله چه تمام جهان ئي په سوري ځائيده ÷ چه له خوبَ بيدار شه نو د تعبير په فکر کښس وه چه ناګهانه چا پرِ زيري وکړِ ورته ئي ووئيل چه مبارک شَه فرزند دِ وشه ÷ امير سبکتګين ډېر خوشحالَ شه او دِ دغه نيک خوب په سبب سرهِ ئي نوم د فرزند محمود کيښوده او اميدوار د لويي مرتبي او د عزّت شه ÷ بيا په لوړه مده کښس ئي بوټي د اقبال په هسي شان سوري پيدا کړِ چه ډېر عالم ئي د سورِي لاندِ کښيناست ÷ لکه دا بيتونه د فردوسِي په دي خبره شاهدِي ورکوِي ÷

بادشاهيِ کښس د محمود غازِي سلطان کړه شرمښ اوبه څښي په يو مکان
چه هلک ورښي له مورَ پيدا شِينه په ژانګوکښس د محمود نوم يادوِينه

نسبت د بخل هغه بادشاه معتبر ته له انصافَ بهر معلومیږي؛ ځکه چه دوه
ملکونه لاندِ کول او عالمان او شاعران په مجلس کښ کښینول بغیر له دنیا ورکولو او
بي له مال بخښلو نه برابریږي ؛ او دا ظاهره خبره ده چه بي له مقرري وظیفي
نه ځلور لکه روپۍ به ئي لایقو لایقو خلقو ته بخښلي او قسم قسم مهربانۍ به
ئي کولي او فائدي به ئي هرچا نه رسولي ؛ هان دا دوه ځیز که دَ بادشاه دَ
بدنامۍ سبب وِي نو به وِي؛ یو زره‌بداوي دَ فردوسي شاعر سره کول بل په آخر
عمر کښ زر له خلقو آخستل ؛ واِي چه بادشاه په ظاهر صورت ښائسته نه
وه؛ یوه ورځ ئي آئینې ته وکتل خپل مخ ورته ناکار ښکاره شه نو یو وزیر
ته ئي وویل چه خلق واِي چه دَ بادشاهانو مخ ته کانه نظر زیاتوي او خماد اسي
رنګ دي چه په لیدو ئي دَ سړي زړه خپه کیږي ؛ وزیر ورته وِو چه صورت
ښائسته کول تا له څه پکار دي خوي ښائسته کول مناسب دِي چه هر څوک
دربانِ مین ښي؛ دا خبره دَ بادشاه ډیره خوښه شوله او عمل ئي پرِوکړ په ښه
خوي کښ دسې حد ته ورسید چه له ټولو بادشاهانو نه تیر شه ؛

پلار د بادشاه امیر سبکتګین دي او سور ئي د زابلستان د یو سردار لور وه له دي
سببَ ورته زابلي ویلي شي لکه چه فردوسي شاعر ئي صفت کړي دي ؛

# تاریخ

## د سلطان محمودِ غزنوي

جمع کونکو دَ تاریخونو په مبارکو قلمونو سره په پاڼو دَ تصنیفونو خپلو هسي
لیکلي دي چه سلطانِ محمودِ غزنوي یو بادشاه وه چه نیکبختي دَ دین او دَ
دنیائي نصیب شوي وه + او دَ عدل او دَ انصاف شورئي په هر لور بنور شوي
وه + او په کار دَ غزا کښې ئي نشانونه د اسلام ودرولي وُو او بیخونه د
ظالمانو ئي وکښلي وُو چه به جنګ له روان شه تا به ویل چه کُنډِ سیلاب دي
چه په لوړه او په ژوره برابر بهیږي + اوچه په تخت به کښیناست نودَ سرِي
به ګمان وشه چه هدو نور دي چه رڼائي په خاص و عام لګیږي +
هم ئي عقل هم ئي زور وه هم ئي بخت        په دي واړو وه لایق دَ تاج و تخت
مګر په بعضي کتابونو کښې لیدلي شوي دي چه دغه بادشاه ډیر بخیل وه لیکن

# تاریخ

## د سلطان محمودِ غزنوي

جمع کونکو دَ تاریخونو په مبارکو قلمونو سره په پاڼو دَ تصنیفونو خپلو هسي

لیکلي دِي چه سلطانِ محمودِ غزنوي یو بادشاه وه چه نیکبختي دَ دین او دَ

دنیا ئي نصیب شوي وَه + او دَ عدل او دَ انصاف شورئي په هر لور خور شوي

وه + او په کار دَ غزا کښ ئي نښانونه د اسلام ودرولي وُو او بیخونه د

ظالمانوئي وکښلي وُوچه به جنګ له روان شه تا به ویل چه کُنډِ سیلاب دي

چه په لوړه او په ژوره برابر بهیږي + اوچه په تخت به کښیناست نو دَ سړي

به ګمان وشه چه هغه نور دي چه رڼا ئي په خاص و عام لګیږي +

هم ئي عقل هم ئي زور وه هم ئي بخت په دي وارو وه لایق دَ تاج و تخت

مګر په بعضي کتابونو کښ لیدلي شوي دي چه دغه بادشاه ډیر بخیل وه لیکن

تاریخ

# د سلطانِ محمودِ غزنوي

چه مولوي احمد له تاریخِ فرشته نه

پښتو کړی دي

| | |
|---|---|
| په مرغانو کښې طوطي دي عزت‌مند | دا په دا چه ښې خبري کړي دَ خوند |
| مګر دوه شرط په ژبه کښې ضرور دي | دغه دواړه ضروري په بنه دستور دي |
| اول دا چه ښې صحیح کوي خبري | چه خبري ښې په مثل مرغلري |
| بل په بدو دِ خوله نه خوځوي خپله | تل دِ سم په اندازه وي لکه تله |
| بده ژبه دَ سري په ځان بلا شي | خوږه ژبه له سړي چاپېر قلا شي |
| هر سري دَ سرپټوب دعوي چه کاندِ | ځان دِ پوه کاندِ په ډېرو ژبو باندِ |
| په یوه ژبه مطلب نه پوره کېږي | که هوښیار وي هم له سرَ نه پوهېږي |
| که حاکم وي غور هیڅ نه ښي کولي | که عالم وي طالب نه ښي لولولي |
| په سفر کښې لکه نقش دَ دېوال | ګُنګ ولاړ وي بې‌طاقتَ بې‌مجال |
| خصوصًا چه پښتو ژبې ته حاجت | ښېښ وه ډېر زیاتي له حدَ دا ساعت |

**احمد** وکړ په دا شان آسان کلام
چه پوهېږي پرِ کُل واړه خاص و عام



ساعت تیر شه نو دَ هغه ورښي په حق کښ ئي حکم وکړ چه دي
خو بهر و شړئ او چه څه ورځه وي هغه ټل واخلئ ځکه چه دَ بل
سره نیکي نه کوي نو دَده سره هم نیکي پکار نه ده + او دَ دویم په حق
کښ ئي وفرمایل چه دي خو مړ کړئ ځکه چه خلق سره یو بل نیکي کوي
نو دده غم زیاتیږي نو دَ کړیدن د ژوندانه نه ئي وژل بهتر دي +
او دَ دریم دپاره ئي وویل چه په ده زنځره پوري کړئ او په نور ئي
واچوئ چه په سختئ کښ هلاک شي + دري وارو سره ئي په
مناسب دَ خپلو نیتونو معامله وکړه دسني ئي حکم پر جاري کړ +



په هر دم په هر زمان پکار ده ژبه | د همه واره جهان پکار ده ژبه
ناآشنا آشنا کوي سره خبري | په خبرو نزدي کیږي خلق لري
چه دَ چا خوله کښ خوږه ژبه غریږي | دَ مچانو په شان خلق پر بونږیږي
د تورزك به پکار نه وي همه توره | لکه ژبه چه هر ځاي کښ وي منظوره
کار و بار د مصلحت په ژبه کیږي | مصلحت دَ سلطنت په ژبه کیږي
که کاتب دي که کاغذ دي که قلم | ټول دَ ژبي خدمتکار وي دم په دم

دوي تږ تلي وي؛ يوه شپه او يوه ورځ وږي تږي بې خوب بې خوراک ناست وو په بند بهبود نه پوهيدل؛ ناګهانه بادشاه دَ هغه وطن سره دَ اميرانو او وزيرانو په هغه ځاي پېښ شه چه دوي ئې وليدل نو تري ئې پوښتنه وکړله ويل ئې چه تاسو څوک يئِ او دلته څه کوئِ؛ دوي ورته خپل حال ووايه چه سونږ په دي شان راغلي يو او داسي قصه راته پېښه شوي ده؛ نو اوس مو دا مطلب وه چه څوک پېښ شوي چه څمونږ داجګړه ئې خلاصه کړلي؛ بادشاه وَوِ چه تاسو هر يو خپل خپل بيان دَ خپلي خپلي کيني راته په رښتيا سره وکړئِ چه زه په حال پوه شم نو هغه رنګ حکم به وکړم؛ هغه يو وَوِ چه څما خو دا نيت دي چه دَ هيچا سره مِ نيکي و نه کړلي او هيڅوک څما له لاسَ خوشحالَ مه شولي؛ دويم وَوِ چه نه خو دير بنه سړي يي ستا خو هدو بدنيتي نشته بدنيتي خو څما ده چه بل څوک دَچا سره ښه وکړي نو هم ديري ورځي نه خپه يم؛ دريم وَوِ چه تاسو خو دواړه بزرګان يئِ زمونه مو له کيني نه پاک دِي څکه چه څما دومره کينه دَه چه وايم چه ما سره هم چا ښه ومه کړي چه نوم دَ نيکئِ او دَ احسان له جهانَ ورکَ شي؛ بادشاه چه دا خبري واوريدلي له حيرانتيا نه ئې کوتي په غاښو چيچلي او دَ فکر په تال زنګيده بيا چه ديرِ

وه څکه راغي او تا مات کړ + زمرې وَوِ چه رښتیا دِ وُویل +

# حکایت نه څلویښتم

دَ کینه‌کر خپل خان نه نیکي نه زره کیږي نو په بل به ئې څه رنګ پیرزو

شي + لکه یو دري تنَ سرِي په یوه لار کښ سره ملګرِي شول نو یو له بل نه

ئې سره پوښتنه وکړه چه له خپل کورَ بهر ولي څئ اوخه له څئ + یو وُوِچه

څما په کور محلت کښ ښائسته ښائسته خوانان دِي چه دَ هغو جامه ښکي

خلقي لونګئ ښېرِي نور اسباب وښم نو ورنه کتلي نه شم جوړ په دي سبب

له ملک ورکیدلَ مِ خوښ دِي + دویم وُوِ چه څما هم دغه حال دی اودغه

مِ سبب دي + دریم وُوِ چه ناسو دواړه څما سره په غم کښ شریک يئِ مطلب

څمونږ د درې وارو یو دي + چه حال معلوم شه چه درې واړه یو شان دِي

نو سره یو ځاي روان شول چه په لارِ تلل یوه همیانئِ ئې وموندله جوړ درې

واړه سره کښیناستل او وئ ویل چه راځئِ چه دا مال هم په دي ځاي ووېشو

اوخپل وطن ته بیرته وګرزو + ولې هر یو له کینې نه په دي نه راضي کیده

چه ګُنډِ بل ملګري ئې خپله حصّه واخلي + نه ئې دا قوّت وه چه ګُنډِ زر

ئې وېشلي وي او نه ئې داسي طاقت وه چه په ځاي ئې پریښودلِي وي او

خره ډیر خه وکول لیکن لونړي دَ هري خبري ځواب وله پوره پوره ورکړه
خر لاجواب شه او لوبه هم پرِ غلبه شوله نو بیائې په حیلو او په مکرونو
سره روان کړ چه دَ زمري ځاي له لاړل زمري پټ شوي وه تر هغه پوري ئې
غرض نه کاوه چه خرئې یقین حاصل شه چه اوس به نه شي خلاصیدې
جوړ ملنه ئې پرِ ود ترپله دستي ئې را ونیوه او چمغرک ئې وله مات کړ پس
دَ هغه له ماتولو زمري لونړي ته ویل چه ته دلې اوسه فهم کوه او زه
لکوټي ځم چه اوبه وڅښم ÷ چه زمري اوبو له لاړ شه جوړ لونړه لکیدلې ده
دستي ئې دَ خره کیدره خبري کړي ده او زړه ئې ترِ وکښه زدزد ئې وخوړ بیائې
خوله وڅټله پیچي ئې پاکیزه کړلي کښیناستله ÷ چه زمري له اوبو نه راغي نو
مینه ئې وشوه ویل ئې چه اول خو له دي خره نه زړه وباسم چه وخورم
بیا به نور په آرام سره کیږي + چه وئې کتل زړه ئې په کښ پیدا نه کړنو وئې
ویل چه لونړي ددي خره خو زړه نشته ÷ هغي وویل چه بي شکَ صاحبَ
نه به وي + زمري وُویل چه داخنکه چل دي چه خر شته او زړه ئې نشته +
لونړي ویل چه په دي کښ حیرانتیا نشته چه دده زړه نشته عجیبه خبره
په هاله وَه چه زړه ئې وي او دوباره دلته راغلي وي داخو ئې زړه نه

وه څکه راغي او تا مات کړ* زمري وَوِ چه ربښتيا دِ وُويل *

# حکايت نه څلويښتم

دَ کينه کړ خپل ځان نه نيکي نه زړه کيږي نو په بل به ئې څه رنګ پيرزو شي * لکه يو دري تنَ سړي په يوه لار کښ سره ملګري شول نو يو له بل نه ئې سره پوښتنه وکړه چه له خپل کورَ بهر ولي ځئ اوخه له ځئ* يو وُوِچه ځما په کور محلت کښ بنائسته بنائسته خوانان دِي چه دَ هغو جامه پنګي خلقي لونګئِ پيزي نور اسباب ووينم نو ورنه کتلي نه شم جوړ په دي سبب له ملک ورکيدلي مِخوښ دِي* دويم وُوِچه ځما هم دغه حال دی اودغه مِسبب دي* دريم وُوِچه تاسو دواړه ځما سره په غم کښ شريک يئِ مطلب خموښ د دري واړو يو دي * چه حال معلوم شه چه دري واړه يوشان دِي نو سره يوځاي روان شول چه په لارِ تلل يوه هميائئ ئې وموند له جوړ دري واړه سره کښيناستل او وئي ويل چه راځئ چه دا مال هم په دي ځاي وويشو اوخپل وطن ته بيرته وکرزو* ولي هر يو له کبني نه په دي نه راضِي کيده چه کُندِ بل ملګري ئې خپله حصّه واخلي* نه ئې دا قوّت وه چه کُندِ ذر ئې ويشلي وي او نه ئې داسي طاقت وه چه په ځاي ئې پريښودلي وي او

خره دېر خه وکړل لیکن لونبړي دَ هري خبري ځواب وله پوره پوره ورکړه خر لاجواب شه او لوېږه هم پرِ غلبه شوله نو بیا ئې په حیلو او په مکرونو سره روان کړ چه دَ زمرِي ځاي له لاړل زمري پټ شوي وه تر هغه پوري ئې غرض نه کاوه چه خوئې یقین حاصل شه چه اوس به نه ښِي خلاصیدېي جور هلته ئې پرِ ور ترپله دستِي ئې را ونیوه او چمغرک ئې وله مات کړ پس دَ هغه له مانولو زمرِي لونبړي ته ویل چه ته دلي اوسه فهم کوه او زه لکوېي ځم چه اوبه وځښم + چه زمري اوبو له لاړ شه جور لونبړه لکیدلي دَه دستِي ئې دَ خره کیده خبري کړي دَه او زړه ئې ترِ وکښه زرزر ئې وخور بیا ئې خوله وختله ینجي ئې پاکیزه کړلِي کښیناستله + چه زمري له اوبو نه راغي نو مینه ئې وشوه ویل ئې چه اول خو له دي خره نه زړه وباسم چه وخورم بیا به نور په آرام سره کیږي + چه وئې کتل زړه ئې په کښ پیدا نه کړنو وئې ویل چه لونبړي دري خره خو زړه نشته + هغي وویل چه بي شک صاحب نه به وي + زمرِي وُویل چه داځنکه چل دي چه خر شته او زړه ئې نشته + لونبړي ویل چه په دي کښ حیرانتیا نشته چه دده زړه نشته عجیبه خبره نه هاله دَه چه زړه ئې دي او ددباره دلته راغلي وي داخو ئې زړه نه

وه څکه راغي او تا مات کړ* زمړي وَوِ چه رښتيا دِ وُويل *

# حکايت نه څلويښتم

دَ کينه‌کړ خپل ځان ته نيکي نه زړه کيږي نو په بل به يُ څه رنګ پيږزو شي* لکه يو دري تنَ سړي په يوه لار کښ سره ملګري شول نو يو له بل نه يُ سره پوښتنه وکړه چه له خپل کورَ بهر ولي ځيُ اوخه له ځيُ* يو وُوِچه ځما په کور محلت کښ ښائسته ښائسته ځوانان دِي چه دَ هغوجامه ښکي خلقي لونګيُ ښږي نور اسباب وويښم نو ورته کتلي نه شُم جوړ په دي سبب له ملک ورکيدل مِ خوښ دِي* دويم وُوِچه ځما هم دغه حال دی او دغه مِ سبب دي* دريم وُوِچه تاسو دواړه ځما سره په غم کښ شريک يُئِ مطلب ځموږ د دري واړو يو دي * چه حال معلوم شه چه دري واړه يو شان دِي نو سره يو ځاي روان شول چه په لارِ تلل يوه هميانيُ يُ وموندله جوړ دري واړه سره کښيناستل او وُيُ ويل چه راځيِ چه دا مال هم په دي ځاي وويشو او خپل وطن ته بيرته وګرځو * ولي هريو له کښي نه په دي نه راضي کيده چه کُندِ بل ملګري يُ خپله حصّه واخلي* نه يُ دا قوّت وه چه کُندِ زر يُ وښلي وي او نه يُ داسي طاقت وه چه په ځاي يُ پريښودلي وي او

خره ډېره خه وکړل لیکن لونبړي دَ هري خبرې ځواب وله پوره پوره ورکړ چه
خر لاجواب شه او لوبره هم پرِ غلبه شوله نو بیا ئې په حیلو او په مکرونو
سره روان کړ چه دَ زمرِي ځاي له لاړل زمري پټ شوي وه تر هغه پوري ئې
غرض نه کاوه چه څوئي یقین حاصل شه چه اوس به نه ښي خلاصیدې
جوړ هلته ئې پرِ ور ټرپله دستي ئې راونیوه او چمغرک ئې وله مات کړ پس
دَ هغه له ماتولو زمرِي لونبړي ته ویل چه ته دلي اوسه فهم کوه او زه
لکوني ځم چه اوبه وڅښم + چه زمري اوبو له لاړ شه جوړ لونبړه لکیدلي دَه
دستي ئې دَ خره کیده خبري کړي دَه او زړه ئې تې وکښه زوزر ئې وخوړ بیا ئې
خوله وڅټله پنجي ئې پاکیزه کړلې کښیناستله + چه زمري له اوبو نه راغي نو
مینه ئې وشوه ویل ئې چه اول خو له دي خره نه زړه وباسم چه وخورم
بیا به نور په آرام سره کیږي + چه وئې کتل زړه ئې په کښ پیدا نه کړو وئې
ویل چه لونبړي ددي خره څو زړه نشته + هغي وویل چه بي شکَ صاحبَ
نه به وِي + زمري وُویل چه داځنکه چل دي چه خر شته او زړه ئې نشته +
لونبړي ویل چه په دي کښ حیرانتیا نشته چه ده زړه نشته عجیبه خبره
به هاله وَه چه زړه ئې وَي او دوباره دلته راغلي وي داخو ئې زړه نه

کوه * پس له هغه بیا ورپسې روانه شوله چه ورو رسیده خو ورته ویل چه ظالمې کوم بد مې درسره کړي وُو چه زه دِ دَ بلا دَ وړاندِ بوتلې وم فضل دَ رب وه چه وئې ساتلم او که نه وي ما خوچه دغه حال ولیده نولاس مې له ژوندانه نه وُوینځل او طمعَ مې له ځانَ قطعَ شوله * لونبړي وُوِچه له مانه په اوّلِ ځل کښې خطا وشوه چه نه مې خبر نه کړلې او هغه چاځیره جوړه کړي دَه دَ ټوقو دپارهِ چه نا آشنا سرې راشي گمان ئې وشي چه گُندِ دا زمري دي او په کښې هیڅ نشته خوځما له فکرَ وُوتله او داخبره مې تا ته. ورنه ئِ ونه ویله* خر ورته ویل چه چپ شه مکاري دښمني بدکرداري په ما باند دا هسې حال راغلې وه چه که چرې دغه حال په ځوان راغلې وي نو زوړ شوي به وه او بیا په خپلو سترگو مې ولیده او ومِ پیژانده چه زمري وه او نه لا بیا راته والې چه دغه زمري نه وه دَ ټوقو ځیره وَه * لونبړي وویل چه ځه وکړمِ چه ستاسو په خیل ځانه کښې عقل نشته دي او که نه وِي نو داسي خیالونه به زړه کښې راوړل او بد بد گمانونه په دوستانو کول کله مناسب دِي او که ستا عقل وي نو دغه خو نه زمري وه او نه بل څه وه او که چرې رښتیا زمري وي نو هم ځما نه به دِ زړه نه وه بد کړي * مطلب دا دي چه

خر چه دَ لونبړي خبري واوريدلي نو اکر که ده ځوابونه جوړ جوړ کړي وُو ليکن
په سبب دَ يادولو دَ ښه خوراک او دَ ښائسته ځاي طمع ئې پيدا شوله او دَ
لونبړي په خبره ئې يقين راغي + ورته ئې وُويل چه باري څَه چه لاړ شُو که
نه چه هغه ځاي هم وُوينُو چه ته ئې دومره صفت کوي + جوړ په هغه ساعت
روان شول لونبړه وړاندِ دَه اوخر وروسته دي ځنګل ته ورسيدل + زمري
چه له ورايه خروليد له سببَ دَ لوږي نژدي ورتللو ته ئې پري نه ښود او صبر
ئې و نه کړ له ورايه ئې حمله ورباندِ وکړله + اوخرچه له لاي زمري وليد
جوړ په بيرته ئې دوکړ په لوړو په ژورو په کندو په کمرو وزغليدهٔ لار ځان
ئې خلاص کړ + لونبړي زمري ته ډير قهر وکړ او ملامت ئې کړ او ور ته
ئې وويل چه ما دومره په ډير راوست او دا قدر صبر دِ و نه کړ چه لکوټي خو
را نژدي شوي وي + زمري وُويل چه بيشکَ بد مِ وکړل ليکن اوس به څه
چل وشي داخرخو به بيا لاس له را نه شي + هغي لونبړي ورته وويل چه هم
داخر به بيا راولم خو ته تلوار مه کوه چه درته نژدي شي نو هاله پرِ حمله
وکړه + زمري دويل چه زه اوس ښه پوهه شوم ليکن داګمان مِ نه کيږي چه
بيا به درسره راشي + لونبړي ويل چه راوستل ئې ځما په ذمه دِي خو ته فکر

زړه چونه + حاصل دا دي چه قسم قسم سوالونه اوخوابونه دَ دوي په مينځ کښ
وُشول په آخر کښ ورته لونږي وُويل چه اي جاهلَ دَځان دښمنَ بي هيڅ ځان
ځپل په دي سختئِ کښ وژني اودومره دړ نه نه کيږي چه ماسره يوځو قدمَ
لاړ شي + او حال داسي دي چه په هغَه ځاي کښ داسي وابنه دِيچه کبل
خوئي ژملا ملا رسيږي او په نورو وابنو کښ خوئي اوښان پټيږي او هر
طرف په کښ يخي يخي خوږي خوږي رنړي رنړي اوبه بهيږي هرځناور چه هلته
ورؤرسيږي نو په هسي شان ځړيږي چه نور پرِ نه کيږي او بخت به
دَ هغه ځناور وِي چه هلته پيښيږي +

خو بيشک چه کمعقل وه نادان
بي شعورَ لوي احمق وه دَجهان

او که نه وِي نوخواب به ئِي دا رنګ
وه لونړي له ورکړي هغه درنګ

دا ويل دِ کُل دروغ دا معلوميږي
چه پيښيئِ اونول هدوکي دِ ښکاريږي

دغه ستا ناکارَ شکل ګواهي لِينه
چه ويل دِ همه واړه دروغ دِينه

يو سرِي اوښ ته ويل چه اي نيکناَ
له کوم ځايَ راغلي وِچه له حمامَ

هغه وِچه په رښتيا هم دغه شان
دا سپيره زنګون دِ کړي ښکاره بيان

اي **احمد** که ئِي زده وِي دا خواب
ورنه ولي پيښيده به لوي عذاب

ورکه کړي وَه چوړ دپاسَ پړ وروخوت چه کاروانیانو ده ته وکتل نو وئي ویل
چه هيڅ هيړ دا عاجز غریب مسافر له لارې بيلاري شوي دي او په سبب دَ
لوږي مړک نه نژدي شوي دي نه شيئ ډوډيئ یا ویجي راوړيږ چه ورکړو امید
ري چه اوس به جک چوړ پاڅيږ چه خوراک ئي وله راوړ ده ورته خوله کلکه
کړله که هغوي ډیرخه کول خو ده خوله وازه نه کړله + هغوي پوه شول چه
دا خوله دده له ډیرې کمزورتیا نه نه بیرته کیږي نوپو مشر په کښ وه هغه
ویل چه داسي مصلحت کوُ چه ددي سرِي پو دوه یا دري غابښونه وباسُو ځکه
چه سري مړ شي نو بده خبره دَه او که غابښونه ئي نه وي نو هيڅ باک نشته+
هغوي بټولو دا خبره خوښه کړله او دستيِ ئي دَده غابښونه وويستل او ډوډيئ
ئي په ښوروا کښ چوړي کړله او لږ لږه به ئي ورته څڅوله + نو دغه سړي
خپل ځان سره وُویل چه بيشکَ نصیب هرځاي سړي ته رسيږي نو لا
خه دباره پروت يي چه غابښونه دِهم بایلل او نورخلق دِ هم له کار وُویستل
چوړ پاڅید او اوچت کښيناست + لونبړي ورته ویل چه احمقَ دا خه قصي
دِ قطار کړي دِي دم دَ چړمبکيِ نه لږي اوکوتي ښامارانو ته آچوي بيعقلَ دَ
خپل ځادو سره ښي غزول بکار دِي نه چرته اودَ مغو خلقو شان

فکر وکړ چه دا به خوراک له کومَ مومي جوړ په یوځاي کښ ور ته پټ
کښیناست ویل ئي چه نن ورځ ورته دلته کښینم چه حال ئي زده کړم + چه یو
ساعت تیر شه یو زمري راغي ښکار ئي کړي وه چه څه ئي خواړه هغه ئي وُخواړه
نور ئي دغه لونبړي ته ور تیل واهه + چه سړي دا حال ولید نو وئي ویل چه
روزي په هر شان سړي ته رسیږي نو څه له ځان دړوم جوړ لاړ شه په یو
غره کښ په غار کښ کښیناست + چه دوه دري ورځي پرِ نهاري تیري شولي
نو وئي ویل چه اوس لا جوړ یم او بیا به زیات بيطاقتَ شم نو مناسب
دِي چه اوس دَ ځان غور وکړم + چه دي روانیده نو له غیبَ پرِ آواز وشه
چه تا له خداي لاس او پښي درکړي دِي نو زمري شَه او وکته چه ستا له لاسَ
نور څوک خوراک ومومي او لونبړه کیږه مه چه دَ بل پس خوردي ته دِ سترګي
وِي + خر ویل چه په دي باب کښ ما بل شان قصه اوریدلي دَه او تا بل
شان وُویله او په اصل کښ داسي دَه چه یو سړي په حدیث کښ ولیدل چه
روزي په هر ځاي کښ سړي ته رسیږي نو ده وویل چه باري ځم چه په
دي حدیث خو آزمیښت وُکړم چه دا به څنګه وشي نو دَ یو غره په طرف په
بیابان کښ له لاري لري او له ودانۍ نه په دډه پریوت + ناګهانه یو کاروان لار

او ښاي به ور ته چړقاويده او ادربوښي او ارداوه او بوس او وابنه به ور ته
په بنه شان په وقت وقت رسيدل نو دغه خر ډير وژړل او فرياد ئې وکړ
او وئې ويل چه اي پاک ربّ زه دِ هم مخلوق يم او دا دِ هم پيدا کړي دي او
د دوي دا حال دي او ځما دا گذران دي . دي په دي دعا او په فرياد کښ وه
چه ناگهانه آواز وشه چه آسونه زين کړيږ په فلاني ښاي کښ مقدمه دَه چه
جنگ له روانيږي . في الحال آسونه طيار شول مقدمي ته لاړل . چه نماښام
شه او آسونه له جنگ را وگرزيدل نول ښاي په ښاي زخميان پرېوتل او
نعلبندان راغلل مهترانو ور ته د آسونو پښي ټ تړلي نعلبندانو به په انبورونو
باندِ غوښي د آسونو را ټولي او تظري به ئې نرِ په چړو او په قينچو پرېکولي
او گوليږ به ئې له پرهرونو نه وکښلي . خره چه دا حال وليد و ئې ويل چه
پروردگارَ ځما په دي خپل روغ صورت شکر دي او بغير له خپل ښان بل نعمت
نه غوارم . نو چه دا خبره ما له خپل پلار نه آوريدلي دَه نو له ښني ورځي
راهيسته په هر شان چه ساعت تيريږي صبر پرِ کوم . لونبړي ور ته وُوِ چه
په تا د مئه سړي توته شوي دَه لکه چه يوه ورځ په لار روان وه ناگهانه يوه
ښځه لونبړه ئې وُليده چه پرته وَه او له ښايَ خوځيدلي نه شوه نو دغه سړي

یا بل څه ښناور په چل ول سره رادلي نو دلته به ئې مات کړم بیا د دوارو کار به پر ورشي ۰ لونبړي ور ته وویل چه دغه بیم لاهم هر څه چه م وموندل بو وار به بئې ستا د وړاندې حاضر کړم دا ئې وویل او روانه شوله ۰ ناګهانه په یو خر باندې پیښه شوله چه خرئې ولید نو له ورایه بئې پر سلام ووایه او ور ته بئې وویل چه دا څه کوي چه په ناکاره ځاي کښ ګرزي چه نه اوبه شته او نه واښه شته تش کانړي او لوټي دي نور هیڅ نه موندلي کیږي ۰ خر وویل چه په قضا م رضا ده هر څه قسمت چه خداي کړي دي په هغه خوشحال یم ښما په حق کښ به دا ګذران ښه وي خداي خبر دي چه د لغمتونو سره خوسره غنونه پیښیږي ۰ لکه ما ته چیل پلار قصه کړي ده چه د یو بټیاري خر وه چه ډیر خوار شوي وه شا ئې ځاي په ځاي زخمي شوي وه او د بادشاه میرآخور د هغه بټیاري سره آشنا وه یوه ورځ ئې ور ته وویل چه دا خر دِ ولي داسي خوار دي ۰ هغه وویل چه واړه لوږه ده نور هیڅ نشته ۰ میرآخور ور ته وویل چه راوله دا خر څو ورځې په طبیله کښ پریږده چه ګرزي داسي به خورب شي چه درته وغوړیږي ۰ بټیاري چوړ په هغه ساعت خر طبیلي ته روان کړ او هلته ئې پریښوده چه خره د آسونو حال ولید چه بیل بیل په کراره کیده

مخې له ورغلله او دا حال ئې ورته نقول وُوايه ÷ چه زمري خبر شه نو فکر ئې وکړ بيائې شادو ته وُويل چه معلوميږي چه دا کيدړ ته دي دا به بله څه بلا وِي او که نه وِي نو کيدړ غوږ او څما په کور کښې کښينا ستلې څنګه ÷ شادو ورته قسمونه او سوګندونه وکړل ويل ئې چه ما پخپله ور سره خبري کړي دي نوزه داسي ناپوهه شوم چه کيدړ نه پيژنم څه ÷ زمري ويل چه ستا خبره منظوره ده ليکن دا په عقل کښې نه راځي چه کيدړ به داسي وکړي ÷ او کيدړ خپلي سنځي ته وُويل چه زمري را نزدي شي نو ته په خپل هلکان جنګيږ وژړوه او بيا داسي ووايه چه دوي د زمري تازه غوښه غواړي او وائي چه موږ بيي ناکه غوښه نه خورُو ÷ هر کله چه زمري را نزدي شه نو هغې کيدړي خپل بچي وژړول نو کيدړ ورته وُويل چه دا واره ولي ژړوي ÷ هغې وُويل چه د زمري غوښه غواړي ÷ کيدړ ورته ويل چه پرون م لا غټ زمري وژلي وه نو بيا هغه غوښه خلاصه شوله څه ÷ هغې ويل چه دوي تازه غوښه غواړي باسي کله خوري ÷ کيدړ ويل چه دار وکړيږ اوس به غټ زمري راشي نو به ئې وُوژنم نو بيا تازه غوښه خوريږ ÷ زمري چه دا خبره واوريدله جوړ له هغه ځاي ئې دَوکړ لاړ وتښتيده او زړه ئې داسي ولويده چه په هيڅ رنګ ئې خاطرجمي

په یو ځنګل کښ یو زمري اوسیده او یوه ښادو هم ورسره ملګري وه. یوه ورځ زمري د څه کار دپاره چرته تلو ښادو ته یې وویل چه ته دلته ناسته اوسه او تر هغه پوري چه زه نه یم راغلي نو چرته مه ځه او کور هم خوک مه پرېږده چه زمري بهر وتلي دي ناګهانه یو کیدړ او کیدړه د بچو سره هلته کښې پېښ شول. چه هغه ځاي ته یې وکاته او تماشه یې وکړه نو هغه ځاي ور ته ډېر ښه ښکاره شه جوړه په هغه ځاي کښ پاتي شول. ښادو راغله ور ته یې وویل چه ملک ته دلته پاتي شولي او دا ځاي د زمري دي که چري را ورسیږي نو ستا دپاره به بده شي. کیدړ ور ته وویل چه ته چپ شه کم عقلې دا ځما د پلار ځاي دي ما ته میراث پاتې شوي دي او فرض کړه چه دي وي نو بیا ستا څه کار دي نه پوهیږې او زرګر پوهیږي. ښادو چه دا واوریده چپ شوله او له ځانه سره یې وویل چه ځما پر څه دي چه څه کوي هغه به موږي. بیا کیدړ ته ښځي وویل چه څه چه دا ځاي پرېږدو ځکه چه زمري زورآور دي هسي نه وي چه څه فساد پېښ شي. کیدړ وویل چه اې ښځي ته بېغمه کښېنه که بیا راغي نو هغه ساعت هغه ... به دا خبره کښ وو چه سوري راغي جوړ ښادو په ژړا سره

عمر به په کوتنوڼې کښې کښېنم او هيڅ کار به نه کوم ٭ ما ورته ويل چه
هغه کوم سفر دی هغه خو هم ووايه چه واورم ٭ ويل ئي چه د پارس کوکړ به
راوړم چه چين ته يې تم ځکه چه هلته کښې ګران خرڅيږي ٭ او له چين نه
به چيني لوښي روم ته وړم چه هلته هم ډيره ګټه په کښې کيږي ٭ او له روم
نه به وريښمين ټوکي هندوستان ته وړم چه په هغه ځاي کښې هم نفع
ياديږي ٭ او له هندوستان نه به پولاد حلب ته وړم چه هلته پوره نفع په
کښې حاصليږي ٭ او له حلب نه به ښيښي يمن ته يارُوم ځکه چه هلته په
مناسب سره ارزيږي ٭ او له هغه ځاي به يمني څادرونه پارس ته راوړم ٭ پس
له هغه م زړه دي چه سوداګري به پريږدم ٭ هر کله چه دي سترې شه او
زياتي طاقت ئي پاتي نه شه نو ما ته ئي وويل چه سعدي ته هم له څه ليدلو
آوريدلو نه څه ووايه که نه ٭ ما ورته ويل چه زه څه ووايم تا دومره څه
وويل چه ځاي دې د ويلو پري نه ښودو نو ٭

تا به نه وي آوريدلي چه يو وار     ده پريوتي سوداګر له اوښ نه لانړ
وې چه موړ به شي ورسترګي دنيادار     يا په صبر يا د ګور په خاورو بانړ

## حکايت اووه څلويښتم

ووېل چه هر کله چه تا دايي کار وکړ نو ما له بنائي زه هم انصاف وکړم نو منصفي څا دا ده چه دا څيزونه ټول ستا شول او نه به دغان دپاره نور بنکار برابر کړم او پس له دي هر څه چه دايي هغه به کوم + لوګبر چه دا واوريدل نو يې ووېل چه شکر دي چه يې ما ته حکم درستي وکړ او که نه دي نو زه به هم د شرمښ په شان هلاک شوي وم +

# حکايت شپږم خلوېښتم

له شيخ سعدي نه نقل دي چه يو سوداګر م وليد چه اوونيي شلي اوښان ور سره بار وو او خلوېښت کښ مريونه ور سره خدمتکار وو +يوه شپه يې په جزيره د کيش کښ زه خپلي حجري ته بوتلم او تمامه شپه له کډو ودو خبرو نه په آرام نه شه +ويل به يې چه فلاني انبار م په ترکستان کښ دي او فلاني رخت م په هندوستان کښ دي او دا را څخه د فلانۍ زمکي سند دي او د فلاني مال م فلاني سري ضامن دي +کله به يې ويل چه شوق م اسکندريي ته کيږي ځکه چه هوا يې ډيره ښه يادېږي +بيا به يې ويل چه نه هلته نه ځم په دا سبب چه په درياب کښ د سړي طبيعت ګډود شي +بيا يې ووېل چه اي سعدي يو سفر م په نيت کښ دي که هغه وشه نو اميد دي چه باقي

ورته يې ووېل چه ته خما نايب يې نو دا دري واړه څيز په مناسب سره ووايه. شرمښ ووېل چه صاحب ته هم لوي يې او دا ګاوز هم لوي دي نو جوړ دا ستا شه. او زه هم ميانه يم او دا هوسۍ هم ميانه ده نو جوړ دا خما شوه او دا سوئه هم ورکوټي ده او لونبړ هم ورکوټي دي نو دا خود ده ته پاتي شوله. زمري ورته وېل چه عجيبه ده چه ته خما د وړاندې هم زه او خما ياددي او وايي چه زه داسي يم او دا خما شوه ته څوک يې او څه څيز يې او څان در ته څه ښکاريږي او په ما د څه ګمان کيږي دي خواته ما له را شه. چه شرمښ ور ته نږدي شه جوړ زمري پنجه پورته کړله چه وله يې ګذار ورکړ هم په يوه څپيړه يې غريب سر کړ. پس له هغه يې بيا لونبړ ته مخ کړ او ور ته يې ووېل چه دا څيز ونه ووېشه لونبړ ووېل چه دا ګاوز خو د پادشاه د صبا د خوراک مناسب دي او هوسۍ د غرمي دپاره سا تل لايق دي چه پادشاه پر طبيعت صاف کانډې او سوئه به خود د ماښام په وقت کښ پکار شي. زمري ورته ووېل چه رښتيا ووايه چه دا وېش او دا سريتوب د له چا نه زده کړي دي. لونبړ ووېل چه مهربانه پلاره دا خلم سري هغه دي چه په يل بانلې پنډ واخلي نو چه ما د ده حال وليده نو پوه شوم چه څېل څان ته څان ويل پکار نه دي. زمري

پاکیزه موکړل نو بي حلہ ډیر غوښت وشول ٭پس له هغه خلق به راتلل او غوښت به بي قرض وړل نو ستاسو د دوارو پلرونه راغلي ؤ او څمونږ نه بي د پنځه پنځه سوو روپو غوښت وړي ؤ نو اوس زه در تلم ما وي چه هغه خپلي روپۍ رادرم ٭هندوستانیان حیران شول که ورته دروغ وایي نو هم به پنځه پنځه سوو روپو پړه کیږي او که رښتیا وایي نو هم تر دوړو مال ځي آخر خراساني له بي زر روپۍ ورکړلي خانونه بي تر خلاص کړ هغوي په بیرته لاړل او دي کورته راغي ٭

# حکایت پنځه خلویښتم

زمري او شرمښ او لوبړ یوه ورځ جمع شول نو په ښکار روان شول ٭ناګهانه یو کادنه او یوه هوسۍ او یوه سویه په لاس ورغلل نو دري واړه بي د زمري ذیري ته را ودسول ٭او شرمښ او لوبړ په دي طمع کښ ؤ چه زمري به دخپل خوړي سره لایق ویش وکړي او په مناسب مناسب سره به مونږ له حصه راکړي او زمري هم د دوي په نیت وپوهیده نو خان سره بي دا ؤویل چه ستاسو یو شان ګمان دي او څما بل شان نو ګورم به چه څه به کیږي مګر دوي دواړه په خپل خیال بي خبر نه کړل ٭ چه په آرام شول نو زمري شرمښ ته مخ کړ او

نو ډيري روپۍ به ور ته جمع شولي * خراساني ؤويل چه رښتيا دَه چه چرګي په ګرروزونو وِي نو هاګۍ په توپونو وِي او چه ها په توپونو وِي نو آرول به يې خود په ځاښورو کيږي او چه دومره بچي پيدا شي نو خواه مخواه په ډير څه په خرځيږي نو په دي دوارو خبرو کښ هيڅ تعجب نشته * حاصل دا دي چه خراساني د دوارو خبرو نه رښتيا ؤو بلکه دوارو له يې دليل پيدا کړ چه تاسو رښتيا وايۍ * بيا خراساني ؤو چه څما پلار بې شانَ ښه سړي وه او مونږ ډير ورونړه ؤو مګر يو تن راکښ ګنجي وه نو يوه ورځ د هغه ګنجي سر وينځي شوي وه نو مونږ پرِ خاوره وډوړوله * په هغه خاوره کښ د غوښت دانه وه چوړ هغه په کښ زرغونه شوه هغه ډکي ورو ورو لوئيده نو مونږ به يې بيخ نه خاوره آچوله * هر کله چه وکي يې وکړل نو داني به ترِ ريژيدلي او نور ډکي به زرغوينړدل ورو ورو لوي پېټي ترِ جوړ شه * چه څو مُده پرِ تيره شوله نو سوکره شوه بارانونه نه کيدل نو په هر ملک کښ چه به باران وه نو دغه ورور په وله مونږ بيوه * بيا چه غوښت پاينه شول نو مزدوران مو ونيول او د هغه ورور سر نه مو ور وخيژول نو يو څو مياشتي لوئي په کښ وکړ * بيا غوايان مو ور وخيژول او غوبلونه مو په کښ وکړل او

ماسته کول ۰ هر کله چه ماسته په شول نو یو څو ورځې مېښې به یې هغه تلاو
ته ور واچولې نو هغه مېښې به په کښې ولمبېدلې او یو ځل بل ځوا به واورېدلې
را داورېدلې نو هغه ماسته به یې وشړل ۰ نو بیا به یې مېښې ترې وویستلې او
جاله به یې ور کلوه کړله او چاټۍ به یې په کښې ایښې دي نو به را شپېلو به
یې له هغه شلوښو نه کوچ را ټولول او په چاټو کښې به یې آچول ۰ نو چه کوچ
به یې تر ټول کړه نو بیا بوجه به یې د تلاو وویستله هغه شلوښې به یې
مېږې ته خوشې کړلې ټولې به ډکېدلې ۰ بیا چه هغه کوچ به یې ولې کړل
نو په سړو نو منونه غوړي به ترې وختل ۰ خراسانې ورچه بې شک چه دومره
مېښې دي او داسې پېړ کوي او دا رنګ کوچ ترې خېژي نو خواه مخواه به ترې غوړي
ډېر برابرېږي ۰ بیا هغه بل هندوستانې ورچه ځما پلار هم لوی دنیادار ده او
یو څو کروړه چرګې یې ساتلې وي او چه موده د پېرلي به شوله نو یو څو لکه
چرګان به یې ور پرېښول ۰ چه هغه چرګو به هاګۍ واچولې نو لوي لوي تورونه
به د هاګو جوړ شول نو غابتور به یې پرې ورکله کړ او هغه ها به یې بنګنه
پورته کولې چه شل یویشت ورځې به تېرې شولې نو بچې به پیدا شول او یو
بیابان ته به یې ور وویستل ۰ چه به څه موده تېره شوله نو بیا به یې خرخول

# حکايت څلور څلوېښتم

يو تن سړي له خراسان دپاره فريب وړکولو او د ټګئ هندوستان ته روان شه ❊ او دوه تن ټګان له هندوستان خراسان ته را روان شوي وو ❊ ناګهانه په اتک کښې سره د بهتيارئ په کور کښې يو ځاي پيښ شول ❊ نو د خراسان هغه ټګ ور ته ووې چه تاسو چرته روان يئ ❊ هغو ور ته ووې چه خراسان له ځو چه په چا ټګي وکړو او څه تر واخلو ❊ خراساني ټګ ور ته ووې چه ډېر ښه کوئ ❊ بيا هغو له ده نه پوښتنه وکړه چه ته چرته ځي ❊ ده ووېل چه زه هم هندوستان له د دغه کار دپاره ځم ❊ دوي ور ته ووې چه راځه چه سره دلته حال معلوم کړو بيا هر څوک چه غالب شي نو پنځه سوه روپئ به له هغه نورو اخلي او هغه نور به ئې متابعت کوي ❊ جوړ سره دري واړه يو ځاي کښيناستل او مصلحت ئې سره وکړه چه يره دروغ به وايو ليکن هر چا چه د بل خبري ته دروغ ووېل نو هغه به پړ شي ❊ خراساني ور ته ووې چه باري تاسو روايي ❊ نو هغه يو هندوستاني ووې چه زما پلار ډېر دولتمند وه او بې حسابه دنيا ئې لرله او يو څو لکه ميښې ئې وې چه هري ميښې به په منګو پئ کول ❊ او پلار م په ميره کښې يو تلاو چونه کړي وه او هغه پئ به ئې په کښې

ورځ يې په جاله کښې تېره کړله . چه شپه شوله او ځېږه يې له غوښې خالي شوله نو اور د لوږې يې لبنه شه او ډېر تهر ور سره جنبه شه او
غځه لبه لبه کينه چه په ډېر عمر کښې جمع شوي وه هغې په وار ښان
ښکاره کړ . زرکې ته چه لنبه د غضب په مخ کښې د باز ښکاره شوه او
د ځيل ځان مرګ ور ته معلوم شه نو سوړ اسويلي يې وکړ او و يې ويل
چه ارمان دي چه زړه م نکړ و نه کړ او اوس م خلاصيدل ګران شول .
او باز چلونه او بهانې جوړولې دېل يې چه څه چل م وکړلي چه دا زرکه ماته
کړم . عاقبت يې زرکې ته وُوِ چه اي زرکې دا ډېر بنه کار دي چه په ما باندې ښاره
دي او ته په سوري ناسته يې . زرکې وُوِ چه اي مهربانه اوس خو شپه
ده نو ته څنګه په غرمو شولي او زه په سوري کښيناستم . باز ور ته
وُوِ چه ځان ما ته دِ دروغژن ووايه او خبره دِ را ته بېرته را وګرځوله
ور وکړه اوس به دِ علاج وکړم . چېر پنجه يې ور واچوله او را و يې
نيوله هم په هغه ځاي يې را وېرزوله او ماته يې کړله او د يې خوړله .
له عبد الرحمن بابا دي .

به په زور ور سره نه يي برابر د هغو له څنګ مه کښېنه زړه ور

حکايت ۹۲

او ځما په دوستيئ کښ ستا ډيري فايدي دي يوه دا ده چه د نورو بازونو له لاس
په خلاصه يي بله دا ده چه خپلي چالي له به دِ بوزم چه له ټولو زرکو نه پاس
گذران کوي بله دا ده چه هره زرکه چه ستا خوښه وِي هغه به دله راولم چه در
سره مشغولا کوي ٭ زرکي وُوِ چه ته د مرغانو بادشاه يي او مونږ غريبانان خلق يُو
نو که چري ستا په آشنائي کښ زره وره شم او خبره م له خولي يي باکه ووزي نو
بيا به ته په غضب شي او ما له به نقصان شي ٭ باز ور ته ويل چه تا نه دي
آوريدلي چه د دوست سترگي د دوست په عيب نه لگيږي ٭ او زه چه ستا د
محبت دعوي کوم نو بيا څنگه به ستا يدو ته يد وايم ٭ حاصل دا دي چه ډير
سوال او ځواب د دوي په مينځ کښ سره وشول ليکن د زرکي څه هذر پائي
نه شه له غار راووتله او باز د څان سره واخستله او خپلي چالي ته ئي وخيژوله
بيا هلته په خندا او په هوس ئي سره گذران کاوه ٭ چه دره دري ورځي تيري
شولي او زرکه د باز سره خاطره شوله نو بيا به ئي خبري زره وري له خولي وکښلي
بلکه په خنبرو کښ به ئي په باز پوري خندا کوله ٭ او باز چه په دغه کار ليده
نو ظاهر خو به ئي هيڅ نه ويل مگر په زره کښ به ئي لږه لږه کينه پيدا
کيدله ٭ پورخ باز وږي شه او بهر چرته په سيل پسي لاړ نه شه ټوله

فکر وکړ چه په دي دنیا کښ د هر چا ملګري ته حاجت شته دي او خلق وايي
چه هر څوک چه بي یاره وي هغه تل بیمار وي + نو دا زړکه هم ښایسته ده او هم
خوش آوازه ده چه زړه د سړي ور سره خوشحالیږي + پس له هغه مصلحت
ورو ورو زړکي له ور روان شه + چه د زړکي نظر په باز ولګیده جوړ له ویري
په تلوار سره وزغلیده او د عزه په یو غار کښ ننوتله + باز له هوا نه راکوز
شه او د هغه غار په خوله پوري کښیناست او ور ته یې وویل چه اي زړکي
زه ستا له دي هنر غافل وم او دا هومره کمال ستا ما ته معلوم نه وه +
نن ورځ ستا قدر را ته ښکاره شه نو اوس وایم چه پس له دي له ما
نه مه ډیریږه او ځما په ملګرتیا کښ خوشحاله ګرځه + زړکي ور ته ووې چه اي
زورآوره لاس له ما نه ونسه او چرته بله زړکه وګوره چه په غوښه يې ځان
موړ کړي + او په هغه وقت چه اور اوبه یا سوړي او نمر سره يو ځایي
شي نو ځما او ستا ملګرتیا به وشي + باز ووې چه اي زړکي ته فکر وکړه چه
نه ولي ستا سره دامي په مینه او په مدارا خبري کوم + منګلي م ماتي نه دي
چه ښکار پرې نه شم کولي او مښوکه م هم سسته شوي نه ده چه کښي له
خوراک پریوتلي یم + نو هیڅ سبب نشته مګر محبت ستا را باندي باعث دي +

چه دا دنیا دِ هم وکتله او هغه جهان ته دِ هم لاس آچولي دي * نو بادشاه وخندل او چه څه ته د هغه حاجت وه هغه يې وله ور کړل * او يي له دغه سړي ته بل سړي د ويلو په سبب سره ور ته ځان مړ کړ نو هاله يې څه وله ور کړل او که نه وِي نو بل چا له يې نه وُو چه ور کړي * او د هغه سړي داسي کار پيښ شوي وه چه هغه راغي سوال يې وکړ * بادشاه ور ته ويل چه نه دړ کوم که هغه ډيره زاري وکړله ليکن وله يې هيڅ ور نه کړل * بله ورځ د عالمانو سره کښيناست نو ټولو له يې هغه مقرره وظيفه ور کړله او ده له يې څه ور نه کړل * بيا يې له پښو نه زړي زړي ټوکري شليدلي کپړي چاپيره کړلي او ځان يې د رنځورانو سره ملګري کړ هم هيڅ يې و نه موندل * بيا يې ستړګي وتړلي او د ړندو سره يې ځان مل کړ په هغه ورځ هم هيڅ و نه شول * بيا يې په مخ زړوکي واچاوه او د زړو بوډيانو او د کنډو په ډله کښ ورنوت هم هيڅ و نه شول * آخر چه ستړي شه او په هيڅ شان سره کار نه برابريده نو لاړ شه او د بو سړي سره يې مصلحت وکړ او ور ته يې وُويل چه زه به ساه بندي وکړم نو ته م په کټ کښ واچو او په هغه لار باندِ چه بادشاه تيريږي هلته خما کټ کيږده او چه راشي نو ور ته وُوايه چه دا سړي مړ دي او

کفن يُ نښته + او هر څه چه حاصل شي نو بيا به يُ سره نيم کړو + هغه سړي هم هغه شان کار وکړ چه بادشاه پر راغي نو پوښتنه يُ وکړله چه دا مړي ولي دلته پروت دي + هغه ورته ووېل چه قربان دِ شم بادشاهٔ بلا دِ واخلم د ده کفن نښته + بادشاه ډېر مال وله ورکړ وېل يُ چه واخله هم وله کفن وکره او هم نورکار د بار پر د اسقاط د نمانځه د جمعو د خلوېښتيُ برابر کره + چو هغه سړي سر پورته کړو يُ وېل چه تا هم وعده کړي وه چه څه نه ورکوم ولي ما هم وعده کړي وه چه زه يُ نه پرېږدم + بادشاه وخندل او وُ يُ وېل چه هاله دِ څه ومونډل څه ځان دِ مړ کړ +

## حکايت دوه خلوېښتم

اوښ او غوايه او کډوري سره دري واړه ملګري شوي وُو + په يوه لار تلل ناګهانه يوه ګيډيُ د واښو يُ ومونډله نو کډوري وُوېل چه داسي مصلحت پکار دي چه دا واښه لږ دي او مونږ دري تنه يُو نو که دا ګيډيُ وُ ويشُو نو خو د يو تن کار پر نه کيږي او تش د خولي خوند او د ګيډي سوي به وي او که يو تن له يُ ورکړُو نو خواه مخواه څه شخوند به پر وُوهي او ګيډي له به يُ تاو ور شي + او که دا مصلحت ستاسو خوښيږي نو هر څوک چه په عمر

چه دا دنیا دِ هم وکتله او هغه جهان ته دِ هم لاس آچولي دي * تو بادشاه وخندل او چه څه ته د هغه حاجت ده هغه ئې وله ور کړل * او بي له دغه سړي نه بل سړي د ويلو په سبب سره ور ته څان مړ کړ نو هاله ئې څه وله ور کړل او که نه وي نو بل چا له ئې نه وُو چه ور کړي * او د هغه سړي داسي کار پيښ شوي وه چه هغه راغي سوال ئې وکړ * بادشاه ور ته ويل چه نه درکوم که هغه ډيره زاري وکړله ليکن وله ئې هيڅ ور نه کړل * بله ورځ د عالمانو سره کښيناست نو ټولو له ئې هغه مقرره وظيفه ور کړله او ده له ئې څه ور نه کړل * بيا ئې له پينو نه زري زړي ټوکري شليدلي کپړي چاپيره کړلی او څان ئې د رنځورانو سره ملګري کړ هم هيڅ ئې و نه موندل * بيا ئې ستړکي وتړلي او د ړندو سره ئې څان مل کړ په هغه ورځ هم هيڅ و نه شول * بيا ئې په مخ زړوکي واچاوه او د زړو بوډيانو او د کنډو په ډله کښ ورننوت هم هيڅ و نه شول * آخر چه ستړي شه او په هيڅ شان سره کار نه برابريده نو لاړ شه او د يو سړي سره ئې مصلحت وکړ او ور ته ئې وُويل چه زه به ساه بنده‌ي وکړم نو ته م په کټ کيښ واچو او په هغه لار بانډي چه بادشاه تيريږي هلته خما کټ کيږده او چه راشي نو ور ته وُوايه چه دا سړي مړ دي او

# حکایت بو خلو بنتم

په بخارا کښ يو بادشاه وه چه بي شانَ سخي يادېده او بيله بيله ورځ يُ د
پاره د قسم قسم خلقو مقرره کړي وَه + د رنځورانو دپاره يوه ورځ وَه د کنډو
دپاره بله ورځ وَه د سيدانو دپاره بله ورځ وَه د عالمانو ملايانو دپاره بله ورځ
وَه د يتيمانو دپاره بله ورځ وَه د خوارو مُسافرو دپاره بله ورځ وَه + او هر يو ته
به يُ په خپله خپله ورځ دومره څه ورکړل چه د هغي خپلي ښيښتی پوري به
پرِ د هغه گذاره کيدله + ولي شرط په کښ دا وه چه بېره هيڅوک دِ په خوله
څه نه وايي او که چرته چا به په بي نکريږ يا په خطا يا په نا پوهيږ سره سوال
وکړ نو په هغَه ورځ به هغه سړي هيڅ و نه مونډل + مگر په ټول عمر کښ يو
سړي ور نه سوال کړي وه او مال يُ ور نه ډير وړي وه + او هغَه داسی قصه
وَه چه يو سړي راغي او خبر وه چه بادشاه په ويلو باندِ ورکول ته کوي يکن و
يُ ويل چه بادشاهَ مهربانَ زه ډير محتاج يم که څه مهرباني وِي چه څما په
حق کښ وکړي ښي + بادشاه ور ته وُويل چه گمان م کيږي چه ستا په شان بيصبرَ
او بي شرمَ به بل څوک نه وِي + هغه سړي وُويل چه بادشاهَ يقين م دِي چه
په دي زمانه کښ به ستا په شان بل بي شرمَ او بيصبرَ څوک نه وِي څکه

معلوم کړ او نوم ئې د هر يو زده کړ نو په يو چل سره تر وغږيده ؛ چوړ
په هغه ساعت کوتوال ئې را وغوښت او په هغو پسې ئې واستاوه او دستي
ئې حاضر کړل ؛ چه صبا شه او بادشاه په تخت کښيناست او غله ئې ور ته
په مخ کښ ودرول نو هغه سړي چه د شپې ليدلي شوي خپل يه ئې ته خطا
کاوه بادشاه ئې وپيژاند چه دا خو هغه ځموږ ملګري دي چوړ خپل ملګري ئې
په دي حال ټول خبر کړل ؛ هغوي په يو وار عرض وکړ چه سلطان مهربان
بلا د ورکه اوسه ورښيئ ځموږ يوه خبره واوره که مهرباني وي باقي هر څه
چه کيږي هغه به خود وشي ؛ بادشاه ووېل چه ووايئ خپل زړه نه تش کړيئ
چه ارمان مو پاتي نه شي ؛ هغوي ووېل چه ځموږ په ملګرو کښ چه څه معني
وه او څه کمال وه هغه ښکاره شوي دي نو هغه ټول په بنده را نه غله مګر
په يو تن کښ د سړي د پيژاندلو کمال وه او په بل کښ د آزادولو فايده وه نو هغه
د پيژاندلو فايده خو ظاهره شوه ليکن د خلاصولو په فايده نه پوهيږو چه هغه
به کله معلوميږي ؛ بادشاه چه دا خبره واوريدله له حيا ئې هيڅ و نه ويل خو
حکم ئې وکړ چه هغه خزانه راوړيئ او دوي له ئې هومره مال ورکړ چه
دو باره ئې د غلا له کار بيغم کړل ؛

وُوېل چه خداي دِ وبخښه دا خو هډو څمرېږ مطلب وشه ته څمرېږ د ټولو
سردار يې واک اختيار څمرېږ ستا دي ٭ هر کله چه دا حالونه يُ سره ووېل
نو بيا په غلا پسې روان شول چه تلا ته نږدې شول نو د سپي غپا شوله ٭
هغه غل چه د سپو په غپا پوهېده هغه وُوېل چه د دې سپي له اوازَ دا
معلومېږي چه بادشاه څمرېږ سره دي ٭ هغه نورو ورته ووېل چه کم‌عقل
ته نه پوهېږې څه څموږ دپاره خو لم دا څوان بادشاه دي که نه څکه چه
بادشاه خو هغه ته وېلې شي چه تېديان خلاصولې شي او هغه کار د ده
له لاس هم کېږي نو بل بادشاه موږ څه کوُو ٭ بيا هغه د بدې خاوند چه
بوې رواهه نو وې وېل چه دا ځاې خزانه معلومېږي څکه چه ما له د زرو
او د اسباب بوې راځي ٭ نو هغه د کمند خاوند تلا ته کمند واچاوه او
تول پرِ بانږ ټاوريدل ٭ بيا هغه قوت‌ناک د خزانې په کوته کښې سوري
وکړ او تول ور ننوتل او چه څومره اسباب يُ ورلي شه هميره پنډونه يُ
جوړ کړل او بيا په تلا ووتل او بهر له بنهر يُ هغه مال بنخ کړ او نيته
[illegible] چه په [illegible] شي د مال وباسو او په مناسب سره به يُ
[illegible] په هغه [illegible] لاړل او بادشاه د بېل بېل ځاي

معلوم

خپل کمال بیان کړي چه د ټولو حال معلوم شي نو به هاله په عملا پسي روانیږو * نو یو تن وویل چه زه خو د سپي په ژبا پوهیږم چه هر څه وائي هغه را ته معلومیږي * بل وویل چه زما دا کمال دي چه که د شپې را ته ډیر لري سړي ښکاره شي نو بیا د ورځې چه ئي ووینم نو را ته نه خطا کیږي * بل وویل چه زه خو زور او قوت ډیر لرم او چه کنډه ته کښینم نو په یو ساعت کښ سوري کوم * بل وویل چه زما خو کمال په پوزه کښ دي نو چه هر چرته چا زر ښخ کړي وي نو زه ئي په بوي پوهیږم * بل وویل چه زه خو په کمند غورزولو کښ استاد یم په هسي شان سره چه که ډیر مهین او هوار دیوال وي خو چه زه ور ته کمند ور وغورزوم نو په کښ ونښلي * چه غلو ټولو خپل خپل کمال بیان کړ نو بیا بادشاه ته ئي مخ را وا راوه او ور ته ئي وویل چه ووایه ځوانه په تا کښ هم څه فایده شته دي او که تش پیندونه په چلوي * بادشاه وویل چه په ما کښ فایدي ډیري دي مگر یوه فایده خو دا ده چه که په یو ځاي کښ ډیر بندیان وي او د قتل حکم پر شوي وي او جلاد ور ته توره وکښلي په لاس ولاړ وي او په هغه ځاي کښ زما د ږیري ویښته وخوځیږي نو هغه ټول په خلاص شي انشاء الله تعالی * هغوي

عذر دِ وکړ چه بې له ژړا نه زړه نه خوشحالیږي + قاضي ور ته ویل چه شیخ ته نه پوهیږې چه ناکاره نه دي نو بشه. په هلو ځوک و ته پیژني که کانړي نه دي نو مرغلرو له په څوک لاس هم ور نه وړي اوکه بروا توب. نه دي نو د نورزن په ځوک نوم یاد نه کړي اوکه جهل نه دي نو علم او حکمت په عبث شی نو اوس که زه او ته دي نخور ته مجبنه و نه کړو نو څمو بزو او د عامو خلقو سره کوم فرق دي + پس له هغه شیخ هم راضي شه دري روپۍ یې نخور له ورکړې او قاضي هم او دعا یې ور ته وکړله. دواړه ویل چه ورځه خداي دِ مل شه او په صورت دِ رب رونږ کړه دنخور په طبیعت صافۍ سره روان شه +

# حکایت خلوبښتم

د محمودِ غزنوي بادشاه دستور داسې وه چه په شپه کښې به دپاره د غور د عاجزانو په غریبانه جامه کښې گرزېده + یوه شپه چه په دستور خپل سره روان شه ناګهانه د غلو په ټولي باندِ پیښ شه + هغوي پرِ آواز وکړ ویل یې چه څوک یې + ده ور ته ویل چه ستاسو ملګرې یم + هغوي ویل چه ډېره ښه دَه راځه کښېنه چه ور سره کښېناست نو هغو وویل چه هر څوک خپل

حپل کمال بیان کړئ چه د ټولو حال معلوم شي نو به هاله په عملا پسي روانیږو * نو یو تن وویل چه زه خو د سپي په غپا پوهیږم چه هر څه وایي هغه را ته معلومیږي * بل وویل چه زما دا کمال دي چه که د شپي را ته ډیر لري سړي ښکاره شي نو بیا د ورځي چه یې ووینم نو را ته نه خطا کیږي * بل وویل چه زه خو زور او قوت ډیر لرم او چه کندر ته کښینم نو په یو ساعت کښې سوري کوم * بل وویل چه زما خو کمال په پوزه کښې دي نو چه هر چرته چا زر ښخ کړي وي نو زه یې په بوي پوهیږم * بل وویل چه زه خو په کمند غورزولو کښې استاد یم په هسي شان سره چه که ډیر مهین او هوار دیوال وي خو چه زه ور ته کمند ور وغورزوم نو په کښې ونښلي * چه غلو ټولو حپل حپل کمال بیان کړ نو بیا بادشاه ته یې مخ را واړاوه او ور ته یې وویل چه ووایه خوان په تا کښې هم څه فایده شته دي او که نشته به چلوي * بادشاه وویل چه په ما کښې فایدي ډیري دي مګر یوه فایده خو دا ده چه که په یو ځاي کښې ډیر بندیان وي او د قتل حکم پر شوي وي او جلاد ور ته توره وکښلي په لاس ولاړ وي او په هغه ځاي کښې زما د یږیري ولښنه وخوځیږي نو هغه ټول به خلاص شي انشاء الله تعالی * هغوي

عذر دِ وکړ چه يې له ژړا نه زړه نه خوشحاليږي + قاضي ور ته ويل چه شيخ
ته نه پوهيږې چه ناکارَ نه وِيِ نو ښه. په هغه خوک د نه پيژني که کانړي نه
وِي نو مرغلرو له به څوک لاس هم ور نه وړي او که برواتوب نه وي نو د
تورزن به څوک نوم ياد نه کړي او که جهل نه وِي نو علم او حکمت به عبث
شي نو اوس که زه او ته دي نغوړ ته بخښنه و نه کړو نو خنوبو او د
عامو خلقو سره کوم فرق دي + پس له هغه شيخ هم راضي شه دري روپۍ
يې نغوړ له ورکړلې او قاضي هم او دعا يې ور ته وکړله دواړه ويل چه ورځه
خداي دِ مل شه او په صورت دِ رب روغ کړه دنغوړ په طبيعت صافۍ
سره روان شه +

# حکايت خلويښتم

د محمودِ غزنوي بادشاه دستور داسې وه چه په شپه کښې به دپاره د غور
د عاجزانو په غريبانه جامه کښې گرزيده + يوه شپه چه په دستور خپل سره
روان شه ناگهانه د غلو په ټولي باندې پيښ شه + هغوي پرِ آواز وکړ ويل
يې چه څوک يې + ده ور ته ويل چه ستاسو ملگري يم + هغوي ويل چه ديره
ښه ده راځه کښېنه چه ور سره کښيناست نو هغو وُويل چه هر څوک خپل

څخه خو فقط شپږ روپۍ دي نور هيڅ نه لرم ٭ قاضي ويل چه مناسب دي چه دري روپۍ ده له ورکړي او دري خان ته پريږدي ٭ دوي دواړه لا په دي خبرو کښ وو چه رنځور د قاضي صاحب خټ ته کتلي دي ور ته عجيبه ښکاره شوي دي جوړ ورو ورو نزدي شه قاضي صاحب ويل چه کنه ما ته څه خبره کوي جوړ يو مضبوط پړق يې قاضي صاحب له هم ورکړ او و يې ويل چه دا روپۍ جوړي شپږ واړه ما له راکړئ او ما رخصت کړئ زه جوړ نه يم دومره ودريدلي نه شم ٭ قاضي له تهر ورغي دغه ځاي پر د شيخ وار جوړ شه او ور ته يې وويل چه عجب انصاف دي چه په ما باندي حکم کوي او چه په تا خبره راغله نو وچولي دي څه رنګ غوټه کړ او خومره تېره شولي اوس ورکړه ته هم دري روپۍ چه زړه يې ښه شي خلق د ظالمانو لاسونه پريکوي او ته وله انعامونه مقرروي ٭ قاضي وويل چه شيخ ريښتيا خبره دا ده چه په زړه پر ډير خوشحال شوم چه ده ووهلم ٭ شيخ ويل چه سترګي خو دي ښي شان حال دي او له ذره نه د خبر نه يم ٭ قاضي ويل چه سترګي دريځ وګنړه او زړه باغ دي او چه دريځ وژاړي نو باغ هاله تازه شي ٭ شيخ ويل چه قاضي صاحب خداي قادر دي چه اور ګلزار کولي شي نو بي ژړا هم سړي خوشحالولي شي نو دا څه

ده چه ور ته وکتل نو په زړه کښ یې وویل چه ډیر د مزي ښځ یې دي که
یوه مضبوطه ښځیره وله په دا ښځ کښ ، کرم نو ډیر خوند به وکړي ، بیا
یې نکر وکړ او ویې چه طبیب خو تا ته ویلي دو چه هر څه کوه جوړ ور
روان شوي دي او یوه مضبوطه ښځیره یې هغه شیخ له په ښځ ور کړله ،
شیخ وکتل ویل یې مه وهه کمبخته ولې وهي نو یو ځل خو یې نکر وکړ او ویل
یې چه یې له دي بیري را نسم او په دا مخ مخ یې وهم چه بیا داسي نه کوي ،
بیا یې نکر وکړ ویل یې چه رنځور دي هسي نه وي چه له وهلو نه مړ شي دا به
لا بل غم جوړ شي ، خو جوړ له لاس یې وینو او قاضي له یې بوت بیا قاضي ته
یې دویل چه قاضي صاحب دي سړي زه یې هیڅ په ښځ باندې په ښځیره وهلي
یم نو اوس ته وله سزا ور کړه که په خره یې سوروي او مخ یې توروي او بازار
کښ یې کرزوي او که بل څه عمل ور سره کوي ، قاضي ور ته دو چه شیخ صاحب
ته خپکان مه کوه خلق مثل کوي چه ته چت جوړ کړه نو له ما نه پرې نقش
واخله ته وکوره دا عاجز کوم طاقت لري چه ته له ده نه بدل غواړي بلکه که له
لاس د کیږي خو څه خیرات هم ورکړه ځکه چه څوک چا سره بد وکړي او هغه
ور سره بنه وکړي نو سړیتوب او بزرګي دغه ته ویلی شي ، شیخ ویل چه ما

نو هم ور ته معلومه شوه چه رنځورتیا يې سخته ده + بيا يې ور ته وويل چه د
خولي خوند دِ خنګه دي + هغه رنځور وويل چه صاحبه کله خوږ وي کله تريخ
وي کله پيکه وي داسي په يو حال نه وي چه زه ووايم + بيا طبيب ور ته وويل
چه کيږه د څنګه ده + رنځور ور چه صاحب کيږه م پرسيدلې وي غله م نه
هضميږي زړه م سوزي تروي اوبه م له خولي نه راځي + بيا طبيب ور ته
ويل چه دست دِ څه رنګ دي + هغه ويل چه صاحبه کله نرم وي کله کلک
وي کله قبض وي کله آزاد وي + بيا يې ور ته وويل چه څه څيز ته دِ زړه
کيږي + رنځور ويل چه صاحبه له هر څه نه م زړه موړ دي هيڅ م خوا ته نه
کيږي + طبيب پوه شه چه دا ناجوړتيا سخته ده دا سړي دې جوړيدو نه دي +
باري داسي کار پکار دي چه ور ته دا خبره نه کوم چه ته نه رغيږي ليکن چه
پرهيز خو يې مات شي نو به هم بنه وي چه ارمان خو يې په زړه پاتي نه شي +
نو ور ته يې وويل چه ځوانه ستا دارو دا دي چه هر څه خوره او هر خواته
ګرزه او زړه چپل مه خپه کوه + رنځور چه دا واوريدل ډير خوشحال شه او دعا يې
ور ته وکړله او ويل يې چه خم د ولي د غاړي سيل ته م زړه کيږي چه ننداره
وکړم + چه ولي ته ور ورسيده څه ګوري چه يو شيخ سړي ناست دي او دس کوي +

په وداني ئې لاس پورې کاره د هغه بنګلي په حد کښ د يتيمانو کور زاغې +
سړي ورغلل د هغو مور ته ئې ووِ چه دا کور په بادشاه خرڅ کړه + هغې ويل چه
څما څه قدرت دي چه د وړوکو يتيمانو مال خرڅ کړم + سړه ډير څه وکړل خو
دي هغه کور خرڅ نه کړ بيا دا ښځه په څه کار پسې تلې وه چه بيرته راغله
بادشاه ئې کور ودان کړي وه کتونه پوزي برسيني يالښتونه لوښي لرګي هرڅه اسباب
ئې وله غورزولي وه + چه دي وکتل نو ئې ويل چه اي پاکَ خدايَ که زه کور نه
وم نو ته خو حاضر وې په خپل کامل قدرت سره + ناګهانه هغه بادشاه
او هغه اسباب او هغه نور ظالمان په يو ساعت کښ زمکې ولغړدل + لکه
په دي باب کښ عبدالحميد ويلي دي +

د ظالم د ودانۍ مخ په ورانۍ دي دا خبر دي په جهان کښ مسلّم

## حکايت نه ويشتم

هسې يو نقل آوريدلي کيږي چه يو طبيب له يو رنځور ورغې او ور ته ئې
وويل چه صاحبَ زه رنځور يم که دارو لا له راکړي نو ډير به ښه وي او ثواب
به دِ وشي + طبيب ئې لاس ونيو چه نبض ئې وکوت نو له رنګ نه ور ته معلومه
شوه چه ډير ناجوړَ دي بيا ئې ور ته وويل چه ژبه وباسه چه ژبه ئې وويستله

مکر چه څوک نصیحت نه آوري نو دا به ئې حال وِي ✣

# حکایت انه دیرشم

بیکلي شوي دِي چه یو بادشاه نیت وکړ چه د خان دپاره یوه عجیبه بنګله جوړه کانډِ ✣ نو اول خو ئې کچ کړ را جمع کړل او ورته ئې وویل چه ځما دپاره یوه بنګله پکار دَه تاسو لاړ شئِ او په فلاني ځاي کښ لبنه وکرئِ ولي په داسي ترتیب سره چه هیڅ نقصان په کښ نه وِي ✣ بیا ئې ترکاڼان را وبلل حکم ئې ور ته وکړ چه غره ته لاړ شئِ ځما د بنګلي دپاره لرګي طیار کړئِ ✣ هغوي غره ته روان شول چه ور ورسیدل نو په کار ئې شروع وکړله چا به په تبرونو لرګي وهل چا به په آره بانډِ تختې ویستلي چا څخه به خوړلي ترنځ په لاس کښ وو ارګي به ئې سوري کاوه چا به په رندي بانډِ شانیرونه او سرپاریئِ لهري هوارول ✣ هغوي خو په خپل کار بانډِ لګیا وُو ✣ او هلته بادشاه حکم وکړ بیلداران او نور دخښو مزدوران ئې را وغوښتل ✣ هغوي لاس پوري کړ چا به په یومونو او په سبسورو خاوره کنودله چا به اویه راوړلي خښته به ئې جوړوله چا به په چاريئِ بانډِ خښته آږوله چا به خښتي سازولي چا به کانړِي او ځناکونه د چوني د جوړولو دپاره راوړل ✣ حاصل دا دي چه مناسب د ودانۍ اسباب ئې تول طیار کړ ✣ چه

او په آشنائي بانډ زره بد وي ځکه داسي وائي هغي ويل چه ډيره ښه ده خپله
رضا کوئ بلي چيندخي ور ته ووئيل چه د دي دا خبره هم ښه ده ولي زه وايم
که چري دا تار د چا په پښه کښ ونښلي او راکښلي شي نو ستاسو به د
هري يوي کمان وي چه دام هغه آشنا راغلي ده او هغه به بل ځوک وي چه
سره جمع شيئ نو دوامه به خرابي شيئ دري دغي ته هم وويل چه چپ شه مه
کيا اوسه بلي ور ته ووئيل چه ځوک د چا مصلحت نه آوري نو بيا ارمان
وکړي خو فائده يئ نه وي تاسو فکر نه کوئ اي سپي که ته بهر له دښمن
نه تښتي نو ښي به د بندي وي تللي به نه شي او که چري دښمن لاندي کړلي
نو دا چيندخه به هم در سره راکښلي شي او د چيندخي به هم داسي حال وي
نو د يوي په سبب به بله هم مړه شي دري ويل چه خير دي که يو ځاي
مړک وي خو لا به ښه شي ناګهانه يوه ورځ تيوخ راغلي په سره يئ عزت نه
وکړله مړه تښتيدله سکر ښي يئ ونښتلي چه تيوخ له په پنجو کښ ورغاله جوړ
پورته يئ کړله ناګهانه په تار پوري چيندخه هم را پورته شوله چه تيوخ په يو
کلي ورغي د هغه کلي خلقو شور کړ ويل يئ چه دا تيوخ څه هنر جوړ کړي
دي چه چيندخه يئ له اوبو راوکښلي ده چيندخي ووچه تيوخ هيڅ نه دي کړي

مکر

ور ته وُویل چه دبر ښه وایي مګر چه لګوټي پس پس دیدن کیږي نو مینه
زیاتیږي * مړي وُویل چه دا رښتیا دي سګر زیاتیدل هلته بکار وي چه مینه
کمه وي او چه مینه زیاته وي نو بیا زیاتول يُ څه رنګ کیږي * ما سره داسي
مصلحت وکړه چه زه ساعت په ساعت ستا دیدن کوم څکه چه ناري در نه وهم
خو ته يُ آوریدلي نه شي او که پنځله درځم نو هغه خود ښکاره خبره دَه
چه زه در تللي نه شم * نو یا داسي وکړه چه یو ریبار وي چه سوال ځواب
رسوي او یا یله یوه تنبه په مینځ کښ مقرره شي چه په هغي سره پوهیږو او
دواړه یو ځاي کیږو * چیندځي وُویل چه باري داسي کار به وکړو چه یو تار پیدا
کړو او یو سر يُ ستا په پښه پوري وتړو او بل سر يُ ځما په پښه پوري
نو چه ستا حاجت شي نو ته به د تار سر را کاږي نو زه به خبر شم او که
ځما حاجت شي نو به يُ زه را کاږم نو ته به خبر شي نو خود به دي کاربه
سره دواړه یو ځاي کیږو او مجلس مشغولا به سره کوو * ناګهانه بلي چیندځي
ور ته وُویل چه کوريُ دغه کار چه تاسو خوښ کړي دي دغه دواړو له ید دي
څکه چه یو به هم لري په خپل کار پسي تللي نه شي او بل به هم په خپله
رضا کرزیدلي نه شي * دوي دواړ ور ته وُو چه ستا به خمونږ په دوستيُ

بیا شیطان غله ته دُوِ چه ته وار وکړه چه زه دي مړکړم نو بیا ته دا غوا بیایه.
غله وُوچه نه ته وار وکړه چه زه غوا بوزم نو هاله بیا دي وژنه. حاصل دا دي
چه یو د بل يُ سره نه منل جوړ دواړه په جنګ شول چه پرزول يُ سره
ونښلول نو غل کمزوري شه خو چه طاقت يُ ورک شه نو رزيُ شیخ ته آواز
وکړویل يُ چه شیخ صاحبَ را ورسیږه شیطان راغلي دي تا وژني. شیطان
دُوِ چه را وچلیږه دا غل راغلي دي ستا غوا پټوي. شیخ د دوي په جګړه را
ویښ شه چیغي يُ کړلي د کور محلت خلق را ټول شول شیطان او غل دواړه
وتښتیدل شیخ له مرګَ خلاص شه.

# حکایت اووه دیرشم

د چینذخي او د مږي سره آشنايُ پیدا شوي وَه نو د اوبو په غاړه به سره
دواړه یو ځاي کیدلي او ځله مشغولا به يُ کوله او ورځ په ورځ به يُ سره
مینه زیاتیدله او هره یوه به د بلي په لیدلو خوشحالیدله. یوه ورځ ور ته مږي
وُویل چه اي چینذخي زه له بهرَ تا له راشم او ته په اوبو کښ یي نو حیرانه
شم او چه ناري در ته دیري وُوهم نو ته د اوبو په منیځ کښ یي هڅَه ځما آوازونه
نه آوري او په شپاوروز کښ په یو وار دیدن یاندِ ځما تسلّي نه کیږي. چینذخي

شه همیانئ د اشرفو ډکه ئي بیاموندله شکر د خداي وایه او کور ته روان
شه * چه اشرفئ ئي و شمارلي پوره دري سو وختلي جوړ لاس ئي پرِ پوري کړ
په بنه شان ئي خرڅ کاوه او اشرفئ ئي لګولي * چه څو ورځي تيري شولي نو
هغه شپون د هغه دهقان میلمه شه چه ډوډئ ته سره کښیناستل شپون
په د غم خبري کولي او ساړه ساړه اسویلي به ئي وليستل * دهقان ترِ پوښتنه
وکړله ویل ئي چه دا ولي داسي زهیر ئي * شپون ور ته د سوره او د کوړي
او د همیانئ قصه وکړله * دهقان چه دا خبره واوریدله په تلوار بنځي له
لاړ شه او ور ته ئي وویل چه مونږ ګمان کاوه چه دا مال حلال دي لیکن
دا پردي وخوت * هغه چه ولګیده هغه خود لاړ شه او دا باقي هر څومره
چه وِي راکړه چه خاوند له ئي یوسم * چه بنځي را واخستلي سل اشرفئ
باقي وي هغه ئي وله ور کړلي شپون واخستلي روان شه * چه کور ته لاړ شه
نو یو لرګي ئي تش کړ او دغه اشرفئ ئي په کښ واچولي او لکه همسا یه ئي
د ځان سره ګرزاوه * یوه ورځ په غاړه د یو سیند ګرزیده هغه لرګی ترِ اوبو ته
ولویده جوړ اوبو یوړ * او دهقان د اوداسه دپاره د سیند په غاړه ناست وه
جوړ هغه لرګی ئي ولید نو ئي راوینو کور ته ئي یوړ * یوه ورځ ئي هغه لرګي په

په هغه خاي هيره کړله + چه دي له هغه خايَ لاړ شه بيا يو شپون د کډو
سره راغي چه د چينې په غاړه يې هميانۍ وليده ور دومې کړ او نژدې واخستله +
چه له هغه ځايَ په درو شه او اشرفۍ يې وشمارلې ډير خوشحالَ شه + بيو
وار يې فکر وکړ چه نوره مزدوري نه کوم بيايې فکر وکړ ويل يې چه د چا
په را باندې گمان وشي چه دا څه موندلي دي نو مزدوري بنه ده چه کوم يې +
پس له هغه هميانۍ يې په تخرگ کښ ونيوله او په کډو پسي روان شه + او
دهقان ته چه اشرفۍ ور يادي شولي په جلدۍ ور پسي لاړ ته يو خوا بل خوا
وگرزيده ولې هيڅ په حال يې پوه نه شه + چه کور ته راغي ښځې ته يې حال
ورته دواړه يو ساعت خپه کښيناستل بيا يې سره ووېل چه انديښنه بکار نه
ده هر څه چه نصيب وي هغه پيښيږي خو مصلحت په دي دي چه بيا به
مال نه جمع کوو هر څه چه راشي هغه به خورو + او شپون چه هلته کښ
... خوشې ناگهانه له يو طرف نه پير سواره راغلل + شپانه د سورو له ويري
هميانۍ کښې ته ور وغورزوله و يې ويل چه په قرار به يې بيا وباسم + چه
... روانې کړلې ناگهانه هغه دهقان د کوهې په غاړه راغي چه اوبه
... په کوهي کښ ولويدله + چه پکړۍ پسي کوهي ته ور کوز

سره په خوِلي کښ کښېښوه او په کوړمي کښ ئې ورننه ېستله ÷ چه غوايه ئې روان کړ په لار کښ وله زوي مخې له راغي غوايه تر هغه کور ته بوت او دي په بل کار پسي روان شه ÷ او هغه دهقان د هغه آشنا سره چلب کاوه ناګهانه د قصاب زوي څخه ئې غوايه وليد ÷ او حال داسي وه چه ده نذر منلي وه ويل ئې چه زه به يو غوايه حلالوم جوړ دهغه قصاب د زوي نه ئې غويه واخست کور ته ئې راوست ÷ چه يو ساعت تېر شه د اشرفو تفحص ئې وکړ ويل ئې چه دلته په منګي کښ م هميانۍ د اشرفو اېښي وه هغه څه شوه ÷ ښځي ور ته وويل چه نوره خبر نه يم مګر دا څاي يو سړي له م منګي د اوبو دپاره ورکړی وه ولي نه هغه سړي راغي او نه ئې منګي راوړ ÷ دهقان پوه شه چه اشرفۍ سړي يوړلي ډير خپه شه آخر صبر ئې غوره کړ ÷ پس له هغه غوايه ئې حلال کړ چه ټک ټوک ئې کړ او غوښي ئې طياري کړلي او لري کاښي ئې صافول ناګهانه ئې هميانۍ په کښ پيامونده له حده زيارت خوشحال شه ÷ پس له دغه کاره هميانۍ به ئې د ځان سره ګرزوله په ملا پوري به ئې مدام تړلي وَه يوه ورځ دهقان بهر ووت په يوه چينه باندِ ئې غسل کاوه چه له لښلو نه وزګار شه نو زړوکي ئې واغوستل او هميانۍ ئې

ور دغورزوله او آشنا له روان شه ٭ ولې چه دي ور وت نو ښځي ته ئې ډُوچه
په تلوار دردېږ ښځه کړه ٭ ښځي چه د ښځولو فکر کاوه کور کښې اوبه نه
دي حيرانه په دروازه کښې ودريدله ويل يُې چه کُندِ که څوک راشي چه اوبه
راوړي ٭ ناګهانه يو قصاب د غوايانو د آخستلو دپاره ګرزيده په دروازه
پيښ شه ٭ ښځي ور ته سوال وکړ و يُې ويل چه لکوټيي ما له دا منګي ډک
کړه او راوړه ٭ قصاب منګي واخست اوبو له روان شه چه په لارِ ته په
منګي کښې يُې کړ کوړ داوريده چه ور ته يُې وکتل هميانۍ يُې په کښې وليدله
چه را وا يُې خستله او اشرفۍ يُې په کښې وليدلې نو ډير خوشحالَ شه او و
يُې ويل چه خپل کسب به کوم او دا به سختي ورځي دپاره اماني کيږدم ٭ جور
اوبه او منګي يُې پريښنول او لاړ شه هغه خپلې روپۍ چه ورځنه وي په هغو
يُې يو خورب غوايه واخست او روان شه ٭ چه په وړاندِ ته فکر يُې کاوه
چه دا اشرفۍ کوم ځاي کيږدم ٭ چه ډير فکرونه يُې وکړل نو آخر دا مصلحت يُې
خوښ شه ويل يُې چه دا هميانۍ سلامته د دي غوايه په خولې کښې ورکړم چه
کيدي ته يُې تيره شي ٭ چه بيا يُې حلال کړم نو خود هميانۍ به ترِ سلامته
بيرِ را وباسم ٭ پس له هغه غوايه يُې را د پرزاوه او هميانۍ يُې په ډيرو خوارو

ته معلوم یي چه کونږ نه یي خبره آوري او سره د دي ژه له تا نه یو څیز
غوارم او ته را ته بل خیر یادوي . زرګر ورو چه بښه آورم چه ته کښله
غواري مګر وبنم چه ستا لاس رچیږي او دا زر په در نه پریوزي . نو بیا
به وایي چه جارو راوړه چه د زرو بوټي پر را ټول کړم نو بیا یه غلبیل
غواري د چاڼولو دپاره . نو ما ځکه د جارو او د غلبیل عذر وکړ
چه تا لایق نه وبینم چه دغه کار وکړي نو خواه مخواه یه دي دوارو ته
حاجت پریو ... او دا دواړه خود نشته .

# حکایت پنځه دیرشم

که په زور که په زاریٔ وي که په جنګ ځوک د بل نصیب خوري نه شي هیڅ رنګ
هر سړی ته خپلا خپل قسمت رسیږي په کوشش نه څه کمیږي نه زیاتیږي

لکه یو دهقان وه چه یو کال ئې غله ډیره وشوله نو د دري سوو اشرفو ئې
نرِ په یو ځاي خرڅه کړله او هغه اشرفیٔ یه ئې سنبالي ساتلي او په هیڅ کار
کښ به ئې نه لګولي . یوه ورځ ئې هغه اشرفیٔ را واخستلي او په لاس کښ
ئې آروولي را آړولي ناګهانه یو آشنا ور ته په کوڅه کښ آواز وکړ . چه ده د
آشنا نعره واوریدله نو اشرفیٔ ئې په همیانیٔ کښ واچولي او همیانیٔ ئې منګي ته

ور سره لاړ نه شه آخر تړ روان شه او ور ته يې وويل چه ته پوه نه شوې
او ځان دِ ډوب کړ ٭ چه هغه سړي لاړ شه نو ځوان اوده شه او ميږو ور
ته ناست دي ځوکې يې کړې ٭ ناګهانه يو مچ راغې او د ځوان په مخ کښيناست
ميږو لاس وخوځاوه مچ يې له مخ نه وشاړه هغه مچ بيا راغې ده بيا وشاړه
چه يو څو ځل ده وشاړه او هغه نه منع کيده جوړ ڼهر ورغې دستې لاړ
شه يو لوي کاڼړي يې د جرندي د پل همره راوړ او هغه مچ د ځوان په مخ
ناست وه چه يې وله کاڼړيا پرېښو نو مچ او مخ يې دواړه ذرې ذرې کړل
د ځوان او د ميږو آشنائي پوره شوله ٭
بي‌مطلب د احمقو کار و بار ٭ همره نه دي چه يې څوک وکانډ شمار
که ښيکره څوک د ځان سره کوينه ٭ د جاهل سره دِ نه درومي په لار

# حکايت څلور ديرشم

يو سړي زرګر له لاړ شه او ور ته يې وويل چه ما له کنډه راکړه چه زه
پرې وري درې توکري د زرو وتلم ٭ هغه زرګر ور ته ويل چه غلبيل خما بل
چا وړي دي ٭ هغه سړي ور ته وُوِ چه ته څه وايې او زه څه وايم ٭ زرګر
ووِيل چه چاڼد م په دوکان کښې نشته ٭ هغه سړي ور ته وويل چه ما

ښوان ور ته وویل چه دا د زره را باندې نه بنه کیږي ځکه وایي او که نه ړوي
نو ته گوره چه د صحرا ښناور دي او ښه رنگ ښما سره مینه کوي * هغه
وویل چه زه داسي نه وایم چه د ده تا سره مینه نشته مگر وایم چه دي
بي عقل دي هغه د ده مینه په ستا په حق کښ غم شي * بلکه ما سره
راځه چه سره یو جنس یو زه به د هم خدمت کوم * ښوان وویل چه ور ځه
خپل کار کوه * هغه سړي ور ته وو چه ښما کار هم دا دي چه تا له دي بلا
نه خلاص کړم او تا له مناسب دي چه دي پرېږدي او ما سره ملگري شي
ځکه چه که چري زه ډیر ناکاره شم نو له میلو نه خو به بنه یم او دا در
ته وایم چه د ده په آشنائۍ کښ ستا خیر نشته * ښوان وو چه ښما له
غم نه خلاص یي هیڅ فکر مه کوه خو اوس ما پرېږده چه خوب وکړم * هغه
سړي ور ته ویل که خوب کوي نو د یو سړي په خوا کښ اوده ښه او د
میلو په خواه کښ مه اوده کیږه * ښوان ور ته شا کړله او زړوکي يې په ځان
خور کړ او مخ يې تر پټ کړ * د هغه سړي ور باندې زړه وسه لاس يې ور
واچاوه ویل يې چه پاځه نیک بخت ستا د بنو وایم * ښوان ور ته ویل چه
ورځه ښما د بنو مه وایه * حاصل دا دي چه سړي ډیر ښه وکړل خو ښوان

# حکایت دري دیرشم

په یو ځاي کښ میږو او ښامار په جنګ سره نښتي وُو مګر میږو یې ډیر بي طاقت کړي وه ‐ ناګهانه یو ښوان پرې پېښ شه چه ددي یې ولیدل نو فکر یې وکړ چه ښامار لوي ظالم دي نو مناسب دي چه د میږو ملګري شم او ښامار په دوارو تنو ووژنو ‐ او د میږو چه په ښوان نظر ولګیده نو فریاد ونه او اشارتونه یې ور ته وکړل ښوان توره ووېستله او ور دَو یې کړ په ښامار یې ګذارونه وکړل ښامار مړ شه او میږو یې تر خلاص کړ ‐ میږو فکر وکړ چه دي سړي ښا سره ډیر ښه وکړل نو اوس ما له ښایي چه د ده خدمت کوم ‐ نو هر ځا ته چه په ښوان ته دغه میږو به ور سره جخت یو ځاي ګرزیده ‐ یوه ورځ دغه ښوان له خوب ورغي اوده کیده خو چه سر یې ولګاوه او ځلاست نو یو سړي پرې راغي ور ته یې وویل چه ښوانه دا میږو دِ خه لګیږي چه ته ملاست یې او دي در ته ناست دي ‐ ښوان ور ته د ښامار نصه وکړه او ویل یې چه اوس یم آشنا شوي دي نو خود را سره یو ځاي ګرزي ‐ سړي ور ته وویل چه ښوانه دا د احمقانو کار دي چه ته یې کوي په دو پوري مه تړه او په هر شان چه کیږي رخصت وله ور کړه او ځان تر خلاص کړه

ښوان

ښوان ور ته وُويل چه دا دِ زړه را باندې نه ښه کيږي ځکه وايي اوکه نه وي
نو ته گوره چه د صحرا ښناور دي او څه رنګ ښما سره مينه کوي + هغه
وُويل چه زه داسي نه وايم چه د ده تا سره مينه نشته مګر وايم چه دي
بې عقل دي هغه د ده مينه به ستا په حق کښ غم شي + بلکه ما سره
راځه چه سره يو ځاى يُو زه به دِ هم خدمت کوم + ښوان وويل چه ور ځه
ځپل کار کوه + هغه سړي ور ته وُوِ چه ښما کار هم دا دي چه تا له دي بلا
نه خلاص کړم او تا له مناسب دِي چه دِي پرېږدي او ما سره ملګري شي
ځکه چه که چري زه ډير ناکارَ شم نو له ميلوُ نه خو به ښه يم او دا در
ته وايم چه د ده په آشنايۍ کښ ستا خير نشته + ښوان وُوِ چه ښما له
غمَ نه خلاص يې هيڅ فکر مه کوه خو اوس ما پرېږده چه خوب وکړم + هغه
سړي ور ته ويل که خوب کوي نو د يو سړي په خوا کښ اوده ښه او د
ميلوُ په خواه کښ مه اوده کيږه + ښوان ور ته شا کړله او زړوکي ئې په ځان
خور کړ او مخ ئې ترِ پټ کړ + د هغه سړي ور باندې زړه وسه لاس ئې ور
واچاوه ويل ئې چه پاځه. نيک بخت ستا د ښو وايم + ښوان ور ته ويل چه
ورځه ښما د ښو مه وايه + حاصل دا دي چه سړي ډير څه وکړل خو ښوان

# حکایت دري دېرشم

په يو ښاي کښ ميلو او ښامار په جنګ سره نښتي وو مګر ميلو يې ډير
بې طاقت کړي وه + ناګهانه يو ښوان پرې پېښ شه چه دوي يې وليدل نو فکر
يې وکړ چه ښامار ډېر ظالم دې نو مناسب دي چه د ميلو ملګري شم او ښامار
په ډاړو ټوټو کړم + او د ميلو چه په ښوان نظر ولګيده نو فرياد ونه او
اشارتونه يې ورته وکړل ښوان توره وويستله او ور دوېکړ په ښامار يې
ګذارونه وکړل ښامار مړ شه او ميلو يې ترې خلاص کړ + ميلو فکر وکړ چه
دې سړي ښما سره ډېر ښه وکړل نو اوس ما له ښائي چه د ده خدمت کوم +
نو هر ځای ته چه به ښوان ته دغه ميلو به ور سره جخت يو ښاي ګرزيده +
يوه ورځ دغه ښوان له خوب ورغي اوده کيده خو چه سر يې ولګاوه او ښلاست
نو يو سړي پرې راغي ور ته يې وويل چه ښوانه دا ميلو ډېر ښه لګيږي چه ته
ملاست يې او دي در ته ناست دي + ښوان ور ته د ښامار قصه وکړه او
ويل يې چه اوس زه آشنا شوي دي نو خود را سره يو ښاي ګرزي + سړي
ور ته وويل چه ښوانه دا د احمقانو کار دي چه ته يې کوي به دده پردي
زده مه تړه او په هر شان چه کيږي رخصت وله ور کړه او ښان ترې خلاص کړه +

وُويل چه زه نه تا پيژنم او نه دِ له مال خبر يم ÷ هغه سوداګر ور ته وُو چه
څما وريښم دِ په اوښانو په مزدورئ راوړي نه دِي څه ÷ هغه ور ته ويل چه
ته خطا شوي يي څه په ساروانانو پيسي ګرزه نو ما ته څه وايي ÷ عاقبت پس له
ډيري جګړي نه مقدمه قاضي ته ورسيدله ÷ قاضي له سوداګر نه پوښتنه وکړه
چه وايه څوان ته څه دعوي لري ÷ سوداګر وُويل چه ما د وريښمو بارونه ده
ته حواله کړيي وُو ويل م چه دا په مزدورئ استامبول ته ورسوه اوس چه يي ترِ
غوارم دي يي نه راکوي ÷ قاضي بيا له ساروان نه پوښتنه وکړه چه ته څه
څواب لري وُوايه ÷ هغه ويل چه زه څه وُوايم ما هډو ساروانيي کړي نه ده نو ÷
قاضي بيا سوداګر نه وُويل چه ته شاهدان لري ÷ هغه ويل چه صاحب په دي
معاملو کښ خوک شاهدان نه لېږي نو ÷ قاضي وُويل چه څئ ورک شئ
احمقانو دا څه عبث قضي را نه کوئ ÷ چه دوي روان شول نو قاضي آواز
وکړ ويل يي چه اي ساروان ودريږه خبره کوم ÷ د ساروان فکر نه وه زر يي
مخ ورستو را واړاوه ÷ قاضي پوه شه چه دا ساروان دي نو بيرته يي وګرزاوه او
مال يي ترِ نه سوداګر له واخست او د منکريدو په سبب يي ګنهګاره ور
ته واخستله او سزا يي پوره وله ورکړله ÷

ځما مطلب و نه شه . پس له هغه قاصد ور ته د هغه عالم خبره په
پنه شان سره بيله بيله جدا جدا واورو له . چه بادشاه واوريدله ډير
خوشحالَ شه او قاصد له يې د کوزيدلو له مشقت نه دوچند دولت ورکړ
او پس له هغه باقي عمر د علم او د عالمانو په ساتنه او په پالنه
کښ شه . او حکم يې وکړ چه هر څوک دِ واوري چه علم نه په داره دې او
نه په زاره دې خو زده کره دِ کوي که لوي وي او که ورو کي وي .

## حکايت دوه ديرشم

يو سوداګر سړي يو څو بارونه د وريښمو يو ترک ساروان ته وسپارل او
ور ته يې ووېل چه دا وريښم استامبول ښهر ته ورسوه . او دې هم ورپسې روان
شه مګر چه يمه لار يې وهله نو ځلته ناجوړ شه او کاروان ته د نه رسيده .
او چه دې ورسته پاتې شه او په نيته ځيله ور نه رغي نو هغه ساروان ګمان
وکړ چه ګنړه سوداګر مړ شه . چوړ لاس يې د وريښمو په خرڅولو پوري کړ نول
يې خرج کړل او اوښان يې هم ور کړل او د ساروانۍ زړوکي يې بدل کړل . چه
پس له څو مُدې سوداګر ور ورسيده او ډيره پوښتنه يې وکړله نو هغه ساروان
يې بيامونډ نو ور ته يې ووېل چه راوړه که نه ځما مال دِ څه کړ . هغه ور ته

نمسي وي او د چا نيکه وي او د چا خوريي وي او د چا ماما وي او د چا تره وي
او د چا وراره وي او د چا ترورزي وي او د چا ترېور وي او د چا ورور وي او
د چا آشنا وي او د چا دښمن وي او د چا دوست وي ۰ نو اوس ته گوره چه
هم دغه يو سړي دی او هر نوم له دي نومونو نه چه په خپل ځاي کښ
ورته څوک وايي نو ويلي شي که نه شي ۰ هغه قاصد ووِ چه بي شک
ويلي شي ۰ نو هغه عالم وويل چه داسي علم ته هم دواړه نوم ويلي شي
که دِ خوښ وي نو ورته علم وايه او که دِ خوښه وي نو ورته د ژوندانه
ونه وايه دواړه نومونه ئي برابر دي هيڅ فرق په کښ نشته ۰ هغه قاصد چه
دا خبري واوريدلي تسلّي ئي د زړه وشوله او له عالم نه ئي رخصت واخست
او د خپل کور په طرف را روان شه ۰ چه ښهر ته ورسيده پادشاه
ورته په اميد کښ وه چه دليار له ورځي بادشاه ترِ پوښتنه وکړله ويل
ئي چه ووايه ميوه دِ وموندله او که نه دِ ده موندلي ۰ قاصد ورته له سره
قصه شروع کړله خپل ربړيدل او په ملکونو او په غرونو او په بيابانونو
گرزيدل او دخلقو مسخري کول ټول حال ئي ورته بيان کړ ۰ چه بادشاه
واوريده نو ډير خپه شه و ئي ويل چه ستا ربړ عبث شه او

په خیر سره وطن ته ورسیږم * هغه دعا ور ته وکړله او بیائي تر پوښتنه
لره چه چرته تلي وي * هغه قاصد ور ته دا ټوله قصه وویله * هغه عالم
داوریده نو ور ته ئي وویل چه تاسو د هغه ځيل عالم په خبره نه پيږ
شوي * هغه ونه بله نه ده هغه ونه د علم ده یعنی د علم میوه چه څوک
نيي نو هغه سړي به هیشه ژوندي وي * او د هیشه ژوندون څه معني
ده هغه معنی دا ده چه خداي ویبژني ښکي بدي ور ته معلومه شي د نیکيُ
عمل کړي او له بديُ نه ځان ساتي کتابونه تصنیف کاندِ شاګردان تر باتي شي
نو هرکله دا سړي په تن مړ شي هم هيڅ غم ئي نشته څکه چه هلته ئي
روح ژوندي وي او دلته ئي نوم ژوندي وي او ثواب ئي دايي کيږي لکه يو ژوندي
سړي چه ښکي کوي او ثواب ئي کيږي * قاصد ور ته وو چه صاحب مړيږ
هم دومره پرهيزُو ناوانان نه يُو که چري هغه علم ياد کړي وي خو مړيږ به
نه شوي وو چه علم وايي ولي هغه د ټولو خلقو د ورانډ ونه ياده کړي ده
او په دي خود هر څوک پرهيزي چه علم د يو څيز نوم دي او ونه د بل څيز
هغه عالم وويل چه ته يا پوه نه شوي تا له مثال پکار دي چه بنه پوه
شي * ګوره يو سړي وي نو د چا پلار وي او د چا زوي وي او د چا

نمسي وي او د چا نيکه وي او د چا خورېي وي او د چا ماما وي او د چا تره وي
او د چا وراره وي او د چا ترورزي وي او د چا ترېور وي او د چا ورور وي او
د چا آشنا وي او د چا دښمن وي او د چا دوست وي * نو اوس ته گوره چه
هم دغه يو سړي دی او هر نوم له دي نومونو نه چه په خپل ځاي کښ
ورنه څوک وايي نو ويلي شي که نه شي * هغه قاصد وو چه بي شک
ويلي شي * نو هغه عالم وويل چه داسي علم ته هم دواړه نوم ويلي شي
که دِ خوښ وي نو ورته علم وايه او که دِ خوښه وي نو ورته د ژوندانه
ونه وايه دواړه نومونه يې برابر دي هيڅ فرق په کښ نشته * هغه قاصد چه
دا خبري واوريدلي تسلّي يې د زړه وشوله او له عالم نه يې رخصت واخست
او د خپل کور په طرف را روان شه * چه ښهر ته ورسيده پادشاه
ورته په اميد کښ وه چه دليار له ورغي پادشاه تر پوښتنه وکړله ويل
يې چه ووايه ميوه دِ ومونده او که نه دِ ده موندلي * قاصد ورته له سره
قصه شروع کړله خپل ربړيدل او په منکونو او په غرونو او په بيابانونو
گرزيدل او د خلقو مسخري کول ټول حال يې ورته بيان کړ * چه پادشاه
واوريده نو ډير خپه شه و يې ويل چه ستا ربړ عبث شه او

او په خير سره وطن ته ورسيږم ۰ هغه دعا ور ته وکړله او بيائي تر پوښتنه وکړه چه چرته تلي وي ۰ هغه قاصد ور ته دا ټوله قصه ووېله ۰ هغه عالم چه واوريده نو ور ته ئي وويل چه تاسو د هغه ځيل عالم په خبره نه يئ پوه شوي ۰ هغه ونه بله نه ده هغه ونه د علم ده يعني د علم ميوه چه څوک وخوري نو هغه سړي به هميشه ژوندي وي ۰ او د هميشه ژوندون څه معني ده هغه معني دا ده چه خداي ورېژني ښکي بدي ور ته معلومه شي د نيکۍ عمل کوي او له بديۍ نه ځان ساتي کتابونه تصنيف کاندي شاګردان تر باتي شي نو هرکله دا سړي په تن مړ شي هم هيڅ غم ئي نشته ځکه چه هلته ئي روح ژوندي وي او دلته ئي نوم ژوندي وي او ثواب ئې دا بي کيږي لکه ير ژوندي سړي چه نيکي کوي او ثواب ئي کيږي ۰ قاصد ور ته ووې چه صاحب مړ بړ هم دومره پوهيږو نادانان نه يو که څړي هغه علم ياد کړي وي خو مړيږ به پوه شوي وو چه علم دا يي ولي هغه د ټولو خلقو د وړاندې ونه ياده کړي ده او په دي خود هر څوک پوهيږي چه علم د يو شيز نوم دي او ونه د بل شيز ۰ هغه عالم وويل چه ته يا پوه نه شوي تا له مثال پکار دي چه بنه پوه شي ۰ ګوره يو سړي وي نو د چا پلار وي او د چا زوي وي او د چا

نمسي وي او د چا نيکه وي او د چا خوريي وي او د چا ماما وي او د چا تره وي
او د چا وراره وي او د چا ترورزي وي او د چا تربور وي او د چا ورور وي او
د چا آشنا وي او د چا دښمن وي او د چا دوست وي * نو اوس ته گوره چه
هم دغه يو سړي دی او هر نوم له دي نومونو نه چه په خپل ځاي کښ
ور نه څوک وايي نو ويلي شي که نه شي * هغه قاصد ووِ چه بي شک
ويلي شي * نو هغه عالم وويل چه داسي علم ته هم دواړه نوم ويلي شي
که دِ خوش وي نو ور ته علم وايه او که دِ خوښه وي نو ور ته د ژوندانه
ونه وايه دواړه نومونه ئي برابر دي هيڅ فرق په کښ نشته * هغه قاصد چه
دا خبري واوريدلي تسلّي ئي د زړه وشوله او له عالم نه ئي رخصت واخست
او د خپل کور په طرف را روان شه * چه ښهر ته ورسيده پادشاه
ور ته په اميد کښ وه چه دليار له ورغي پادشاه تر پوښتنه وکړله ويل
ئي چه ووايه ميوه دِ وموندله او که نه دِ ده موندلي * قاصد ور ته له سره
قصه شروع کړله خپل ربړيدل او په ملکونو او په غرونو او په بيابانونو
گرزيدل او دخلقو مسخري کول ټول حال ئي ور ته بيان کړ * چه پادشاه
واوريده نو ډير خپه شه و ئي ويل چه ستا ربړ عبث شه او

او په خیر سره وطن ته ورسیږم ÷ هغه دعا ور ته وکړله او بیائي ترې پوښتنه وکړه چه چرته تلي دي ÷ هغه قاصد ور ته دا ټوله قصه ووېله ÷ هغه عالم چه وادریده نو ور ته ئي وویل چه تاسو د هغه خپل عالم په خبره نه یئ پوه شوي ÷ هغه ونه بله نه ده هغه ونه د علم ده یعني د علم میوه چه څوک وخوري نو هغه سړي به همیشه ژوندي وي ÷ او د همیشه ژوندون څه معني ده هغه معنی دا ده چه خدای ورېږني نیکي یدیي ور ته معلومه شي د نیکۍ عمل کړي او له بدیۍ نه ځان ساتي کتابونه تصنیف کانډ شاګردان ترې پاتې شي نو هلدرکه دا سړي په تن مړ شي هم هیڅ غم ئي نشته ځکه چه هلته ئي روح ژوندي وي او دلته ئي نوم ژوندي وي او ثواب ئې دامي کیږي لکه یو ژوندي سړي چه نیکي کوي او ثواب ئې کیږي ÷ قاصد ور ته وو چه صاحب مرېږ هم دومره پوهیږو نادانان نه یو که چري هغه علم یاد کړي وي خو مرېږ به پوه شوي وو چه علم وایي ولې هغه د ټولو خلقو د ورانډ ونه یاده کړي ده او په دي خود هر څوک پوهیږي چه علم د یو څیز نوم دي او ونه د بل څیز ÷ هغه عالم وویل چه ته یا پوه نه شوي تا له مثال پکار دي چه ښه پوه شي ÷ ګوره یو سړي وي نو د چا پلار وي او د چا زوي وي او د چا

دا ليوني شوي دي چا به ويل چه مونږ ته معلومه نه دَه مگرچه دا يته سړي ور پسي گرزي نو معلوميږي چه دا به ربښتيا چرته وي * چا به ويل چه په فلاني ځنگل کښ که چري وي نو وي به او بل ځاي م گمان نه کيږي چه گندِ پيدا شي * چا به ويل چه په فلاني ځنگل کښ يوه لويه ونه په هسي شان سره دَه چه سر يُ چا ته نه ښکاريږي او بيخ يُ هم نه معلوميږي او ميوه يُ هم چا له په لاس نه ورځي که چري هغه وي نو شک نشته * داسي هر چا يه ور پوري مسخري کولې او دي غريب به په ځنگلو او په غرونو او په ميرو او په بيابانونو گرزيده * حاصل دا دي چه يو خوا بل خوا ورانډِ ورستو بنکته پورته ډير طلب يُ وکړ مگر هيڅ په حال پوه نه شه نو بيرته راوگرزيدٔ چه وطن ته راته ډير خپه وه اوخان سره يُ ويل چه بادشاه ته به څه عذر کوم * چه په يو ځاي کښ يُ شپه شوه په هغه ځاي کښ يُ واوريده چه يو سړي ويل چه څمونږ په دي کلي کښ لوي عالم دي او بي شان بنه سړي دي * دي قاصد په زړه کښ وُويل چه باري ورشم که څه دعا را ته وکړي نو دسيي پاڅيد هغه عالم له ورغي * چه ملاقات يُ ور سره وشه نو ور ته يُ وُويل چه صاحبَ دعا را نه وکړه چه ايمان م خداي سلامت کړي

ما بخښلي يي د خداي په امان اوسي + طوطي روان شه ويل يې چه السلام عليکم
سوداګر ويل چه وعليکم السلام +

# حکايت يو ويرښم

يو عالم د يو بادشاه د دربار خبري کولي ناګهانه په مينځ د خبرو کښ يې
وويل چه په هندوستان کښ يوه ونه ده که د هغي ونې ميوه څوک وخوري.
نو هغه سړي به نه زوړ شي او نه به مړ شي + بادشاه چه دا خبره واوريدله
ډير په هغه ونه پاند مين شه او سودا واخست چه دا به څه رنګ پيدا شي+
ليکن د هغه عالم نه يې پوښتنه نه کوله چه دا ونه به چرته وي او څنګه به
وي + مګر چه د ده پر ډير باور وه هغه سړي يې په طرف د هندوستان
رخصت کړ او ډير مال يې وله ورکړ او ورته يې وويل چه دا دولت لګوه
او تور به هم در ليږم خو هاله بيرته را ځه چه ماله د دغي ونې ميوه راوړي+
تامصد روان شه چه هندوستان ته ورسيده نو له خلقو نه به يې هر ځاي
کښ پوښتنه کوله او ويل به يې چه هغه ونه کوم ځاي ده چه سړي يې ميوه
وخوري نو بيا هميشه ژوندي وي او څيري نه زړيږي + چه خلقو به دا خبر
واوريدله نو چا به ور پوري خندل چا به ور پوري ټوقي کولي چا به ويل چه

طوطیان وُو هغو ته مِ ستا سلام وُوایه او ستا ارمان او خفقان مِ بیان کړ
په هغو کښ یو طوطي وه خو چه ما خبره خلاصه کړله جوړ هغه فی‌الحال مړ
شه * نو زه پښیمان شوم زړه مِ ډیر خپه شه ما وُویل چه افسوس دي چه
دا خبره مِ نه وي کړي نو ښنکه به ښه وُو * طوطي چه په پنجره کښ دا خبره
واوریدله نو په ده باندِ هم لړزیدل او ریږدیدل او رپیدل راغلل دستي پریوت
په پنجره کښ مړ شه * چه سوداګر ورته وکتل نو په ژړا شه چه ډیر افسوس
او بي‌ښانَ فریاد ئي وکړ نو طوطي ئي له پنجري نه بهر وغورزاوه * او طوطي چه
په زمکه پریوت له هغه ځاي نه او چت والوت پورته په بو ځاي باندِ کښیناست *
سوداګر چه وکتل یو ساعت حیران شه بیا ئي وُویل چه اي طوطي هر څه چه
وشُو هغَه خود وشُو مګر په دي حال خو ما هم پوه کړه چه دا ښنکه
کار وه * هغَه طوطي ورته وُوِ چه هغه ما له خبر را ولیږه او ته پرِ نه
پوهیدلي د هغه مطلب دا وه چه ته ځان مړ کړه نو خلاص به شي او که
ژوندي يې او خوږي خوږي خبري کوي نو د خلاصِي امید مه کوه نو خود زه ستا
له ویلو نه په مطلب پوه شوم هغَه ښان کارمِ وکړ نو خلاص شوم * اوس داسي
وایم چه ستا نمک مِ خوړلي دي ما وبخښه زه رخصت یم * سوداګر وُوِ چه

چه تاسو م تول روغ جوړ په خوشحالۍ سره وموندئ + يو ساعت يې سره
پوښتني يو له بل نه کولي بيا د هر چا دپاره چه يې څه راوړي وُو بيل بيل ته
يې په مناسب سره. ورکړل چا له پنړي دي چا له لونګۍ وَه چا له د قميص
دپاره ټوکي وه چا له د پرتوګ دپاره توکره وَه چا له د پکړئ دپاره سلامت تان
وه چا له ورکوتي پټکي وه د جنکو دپاره د پينو جوړۍ او د په سرولو ډيټمي
او د زرو ښڅو دباره کوښي او د سر پړوني هر څوک يې په خپل خپل شان
په اندازه سره ورپالل ، طوطي ور ته وُويل چه صاحب د هر چا کار
دشه نو ادس ځما به هم څه وُوايي او که نه + سوداګر ور ته وُويل چه رښتيا
خبره دا دَه چه زه ستا په هغَه خبره رَسول باندو هم پښيمان يم نو بيا
تا ته لا څه د هغوي خبر ورسوم + طوطي وُو چه دا هيڅ خبره نه دَه خبر
خو سړي رسوي نو پښيمانتيا څه دَه + سوداګر وُويل چه په نه ويل کښ ما
ته خبر بېکاريږي + طوطي ويل چه ډيره ښه دَه خو تا هخپله مهربانۍ کړي
دَه ويل دِ چه طوطي ته څه غواړي او ادس وايي چه نه وايم نو چه نه
وايي نو شل خلَ بې مه وايه خما خو څه زور نه دي + سوداګر بوه شه چه
دې حيړ شه نو وُ يې ويل چه قصه داسي دَه چه زه لاړم په يو ځنګل کښ

خلاصه کړم.. جوړ په هغه ځاي ورديده او وئي ويل چه اي طوطيانو فلاني
طوطي ځما کره په پنجره کښ بند دي هغه اول تاسو ته سلام ويلي دي او پس
له سلامَ ئي ويلي دِي چه څه مناسب دِي چه زه په بند کښ بي مجالَ يم او
تاسو په سيلونو کښ خوشحالَ ګرځيَ.. چه دا خبره ده خلاصه کړله جوړ په هغوي
کښ يو مشر طوطي وه نو هغه د دي خبري په اوريدو سره لړزيده ريږديده
رپيده هم په هغه ساعت مړ شه کوز په زمکه ولويده.. سوداګر چه دا کار وليد
نو ډير خپه شه او په دغه خپله خبره ياندِ پښيمان شه او ځان خپل ئي
ډير ملامت کړ ويل ئي چه څه له م دا کار کاوه چه دا عاجز بي هيڅ هلاک
شه معلوميږي چه د دي طوطي او د هغه طوطي سره ډيره خپلوي او آشنائي
وَه او مينه محبت ئي سره ډير وُو نو ځکه دي د هغه په خفقان او په ارمان
باندِ دستي مړ شه .. يو ساعت زهير ولاړ وه بيا خپه روان شه .. چه
سود سودا خپل ئي برابر کړل نو بيرته په طرف د کور خپل وګرزيده چه په خير
سره کور ته نوت لوي واړه وله نول را پاڅيدل او ورته ئي ويل چه په خير
راغلي خيرنونه دِ راوړل الحمد لله شکر دي چه صحيح سلامت روغ جوړ خپل
کور ته راغلي .. سوداګر هم وُويل چه ډير ښه ساعت دي ثنا خداي له دَه

ئ را جمع کړل او د بیل بیل نه يې پوښتنه وکړله ور ته يې ويل چه ووايه چه
تاله څه څيز له هندوستانه راوړم • هرچا يه ور ته هغه څيز ياداوه چه څه
به يې خوښ وه • او د دغه سوداګر کره يو طوطي په پنجره کښ بند وه نو دي
هغه له ورغي ور ته يې وويل چه ووايه اي طوطي تاله څه را وړم ځکه چه
زه هندوستان له ځم او ته هم هندوستاني يي نو ووايه چه څه څيز دِ د
خپل وطن خوښيږي •• طوطي ور ته وويل چه ځما دپاره دا قدر مهرباني وکړه
چه فلاني ځنګل له ور شي نو هلته کښ به طوطيان په ونو ناست وي اول
ځما سلام ور باندِ ووايه او پس له سلامَ ور ته ووايه چه هغه فلاني طوطي
چه ستاسو آشنا دي هغه ځموږ کره په پنجره کښ بند دي او ويل يې
چه عجيبه دوستي دَه چه زه په بند کښ يم او تاسو يي غمَ سيلونه کويُ •
نو هر څه چه هغوي جواب درکړ نو هغه ما ته ووايه • سوداګر وويل چه
ديره ښه دَه دا خو به شل ځل وکړم •• سوداګر اسباب تيار کړ ځان ئ سنبال
کړ هندوستان ته روان شه • چه په يو ځنګل باندِ ورغي په هغه ځاي کښ
طوطيان يې وليدل جوړ د هغه خپل طوطي خبره ور ته ياده شوله له ځانَ سره
يې وويل چه طوطيان دلته دير پيښ شوي دي نو مناسب دي چه خپله غاړه

خو ر

کړه که وې خو اوس به ئې تماشه وکړي او که نه وې خود به تا سره پوه شم چه بل څوک داسي دروغ نه وائي ٭ حاصل دا دي چه زمري او سویه دواړه روان شول یو کوهي وه چه د هغه خوا ته ورسیدل نو سویه نږ هلته ورسته شوله ٭ زمري ووئیل چه ولي پاتي شولي ٭ سویي وئیل چه مهربان ته څما رنګ نه ګوري چه څنګه له ویري نه زیړ شه ٭ زمري ووې چه څه سبب دي ٭ سویي ووې چه په دې کوهي کښ هغه زمري دي او څما ملګري هم سلامته ور څخه دَه ٭ زمري ووئیل چه راشه را ته ئې وښئیه ٭ سویي ووې چه زه ویریږم او که ته م په غیږ کښ ونسي نو به ته ویریږم ٭ زمري سویه په غیږ کښ ونیوله چه کوهي ته ور ښکاره شه خپل څان ئې په اوبو کښ ولید یقین ئې راغي چه دا ربښتیا بل زمري دي جوړ سویه ئې پریښودله او کوهي ته ئې ور ټوپ کړ خود بیرته راختلي نه شه او ښکته اوبه ډیري وي په کښ مړ شه ٭ سویه راغله خپلو عزیزانو ته ئې د خوشحالئ خبر وکړ څناور ټول خوشحال شول او د سویي هر چا صفت کاوه او شاباشي ئې پر وایه ٭

## حکایت دیرشم

یو سوداګر وه چه نیت ئې د سفر د هندوستان وکړ ٭ نو د کور لوي او واړه

رواني شوي ود ناګهانه په لار کښې را باندې بل زمري پيښ شه موږ خو اول دا
ګمان وکړ چه دا ځموږ خپل بادشاه دي مګر چه هغه په هيبت سره لاس
را واچاوه نو موږ پوه شو چه دا بل څوک دي نو بيا چه يقين شوه چه بل
څوک دي نو ما ور ته وويل چه خبردار شه چه لاس را نه وړي ځکه چه
موږ د خپل بادشاه دپاره مقرري شوي يو + هغه زمري را ته په قهر شه
او وې ويل چه چپ شه ځما د وړاندې لا هم د بل چا نوم يادوي اوس به
تاسو هم ذري ذري کړم او بادشاه به ستاسو هم قطري قطري کړم + ما ور ته
ووې چه ياري دومره خو م پريږده چه زه بادشاه خپل ووينم + هغه رو چه نه
د پريږدم مګر چه دا ملګري د را ته پريږدې + چه بل شان کار نه کيده نو
خود ملګري م هغه ته پرينښودله او زه نږ په دي هنر سره را ورسيدم ما له
خدای سره ويل چه که دواړه ور نه شي نو يوه خو به وخوري او ساعت به بي
پر تېر شي + نو اوس ورستي عرض م دا دي چه نور اميد له چا نه مه کوه
دغه ... د هغه زمري په سبب بنده را ته معلوميږي بزه نه پوهيږم +
او ... خپل وظيفه د خوبنه وې نو اوس روان شه او لار صافه کړه + زمري
بي اختيار پخيده او له تهرېې ئې ويل چه کوم ځای دي راشه را ته يي ښکاره

کړه

نه راځي + او سویه درو ورو په لار روانه ده او ځان سره فکر کوي خو چه زمري ته ور ښکاره شوله نو هسي ګرېدیٔ ور وُرغلیده چه زیان له دغه يې طاقت نه وه + زمري ور ته نزبو وچولي وښوه او و يې ویل چه اي بدذاتي بيوقوفي دا ولي دِ دومره ډيل وکړ شکر نه کوئ چه زه په یوه سويه باندِ صبا بیګا دوه وقت تېروم او په هغه کښ هم لا تاسو سرپيني کوئ را بانډِ + چه دا وعده م نه وه کړي نو چه زره به م غوښته هغه ځبز به م خوړ او چه ستاسو په طمع شوم نو لار نه م په کتل کتل دوه سترګي خلور شي نو هاله را نه یو پوټي غوښه را ورسوئ + سويي ور ته وُويل چه مهربان که عذر قبليږي خو زه به يې بيان کړم او که اجازت د ویلو نه وِي نو نه به يې وایم + زمري وُويل چه چپ شه احمقي ته به څه يي او ستا عذر به څه وِي + سويي ور ته وُويل چه مهربانَ ته بادشاه يي نو که چري ځما غُندِ مظلومي عرض داوري چه په ما بانډِ په لار کښ څومره سختي تېره شوي ده نو ستا پرِ هیڅ مرتبه نه کمیږي او ځما پرِ د زړه تسلّي کيږي + زمري وُوِ چه بي شک عرض آورم ليکن چه د سرېتوب شان عرض وِي نو د هغه غور هم کوم + سويي وُويل چه مهربانَ بلا دِ واخلم صبا له وقتَ یو زه او یوه ځما ملګري ستا د میلمستیا د پاره را

نه دفع کړي مګر خپله په دي پوه چه دا کار کيدوني نه کښرو بلکه فساد به نور
ډير جوړ شي * او که تا څه خبره غوره کړي دي نو مونږ ته يې هم ووايه چه
په کښي مصلحت وکړو ځکه چه د دوستانو په اتفاق او په جرګه کښي ډير خير
دي * سويي ور ته وويل چه په هره خبره باندي خلق خبردار کول ښه نه دي
نه کوري چه آئينه څه صاف رنګ لري ليکن چه نزدي ور ته خبري وکړي شي
او اسويلي پر وکيږي نو خړه شي * او بل دا دري ځيز پټ بهتر دي يو
زر څلور بل وقت د تللو بله لار د تللو * ښناورو ور ته وويل چه جرګه
او مصلحت خو سنت دي او ته داسي پرده کوي چه نور پر نه کيږي * سويي
ور ته وويل چه رښتيا دي مګر هغه چا سره چه په دي يقين وي چه دا مصلحت
ځما به دښمن ته خبر نه رسوي * حاصل دا دي چه حال يې و نه وايه او
په دي فکر کښي شوه چه د زمري څه علاج وکړم * هر کله چه وقت د تللو
شه نو په هغه ساعت لاړه نه شوه لکوټي معطله شوله * هلته کښي زمري
په غضب شه او ويې ويل چه څه لويه ټکي را باندي وشوله چه د داسي ناکاره
خلقو م واوريدل او که بيا ژوندون وي په عمر به د دي خلقو په وعده باور
و نه کړم * دي په دي قهر او غضب کښي لار کوري چه ځوک راځي او که

پر کاوه او وله به يې را لېږه * مزري هم فکر وکړ چه بې تکليف خوراک همېشه پيښيږي نو څه پکار چه ښان ربړوم * چه د هرچا به وار وه هغه به مزري له ورته او نور به يې وسواس به ښنگل کښې گرزيده * ناگهانه چه وار د سويي راغي نو خپل نوم ته يې وويل چه آخر تر کومه بوري به دا ظلم په مونږ باندې کيږي * هغو ټولو عزيزانو ورته وويل چه دا خبره مه کوه ځکه چه تر اوسه پوري په هر چا چه وار راغلي دي نو عذر يې نه دي کړي * دا بدناموسي راځي چه مونږ ورسره پخپله وعده کړي ده او بيا يې ماتوو * سويي ورته وويل چه که تاسو ښما آوريئ نو زه به داسي کار وکړم چه ټول به له دي غمه خلاص شو * بيا ښناورو ورته وويل چه اې کمعقلي دا کوم خيال دي چه تا خوښ کړي دي آخر ښان ته وگوره له خپلو غوږو وشرميږه نوم ته د فکر وکړه چه خرگوش در ته ويلي شي * سويي وويل چه دا خبره مطلق مه کوئ په دي سبب چه عقل او پوهه خداي سړي له ورکوي او بيا د ورکو له لاسه هسي کار وشي چه لوي ور ته حيران پاتي شي * تاسو نه گورئ چه مچيې ښومره وړوکي څيز ليدي شي او په څه رنگ سره ښايسته کور ډک له گبينه جوړ کړيا * ښناورو ورته وويل چه مونږ په دي خپه نه يو چه دا يلا ښمونږ

لیدل کیږي په لاسونو ښول په غوږو آوریدل په پښو تلل په خولې خوړل دامي
په هر اندام کښ بلکه په هر قسم مخلوق کښ رنګ رنګ او بیلې بیلې فایدې
دي ، نو که کسب ښه نه وي نو دا به نه وُو مګر چه سړي کسب کړي او سره
له کسبَ توکلّ هم کړي نو هغه بهتره خبره دَه څناورو په یوو وار شور جوړ کړ
او ډیر ئې ور پوري وخندل او وئې ویل چه تا هغَه نه دي آوریدلي چه
یو سړي وه چه د هغه په کلي کښ ویاګډه شوله نو دي له مرګ تښتیده
یو ځاي کښ په یوه سمخ کښ ننوت شلته پر یو کاڼي پریوت دسې مر شه
هغه تښتیدل ئي هیڅ بکار نه شول ، مږري وُویل چه خبره کوئ خو ښمګرې
ئي کوئ تاسو نه پوهیږئ چه نوح پیغامبر خداي خلاصاوه نو ورته ئي حکم
وکړ چه بیړئ سازه کړه سره د دې چه بې بیړئ ئي هم ساتلي شه مګر چه اولاد
ته ئي بنکاره شي چه کسب ښه څیز دي ، څناوروي وُویل چه ستا خبره
منظوره شوله چه کسب ښه دي نو دا توکلّ خو هم یو کسب دي نو بیا دا
کسب دِ ولي نه خوښیږي ، حاصل دا دي چه څناور په حجّت کښ غلبه
شول او د زمري څه دلیل پاتي نه شه خواه مخواه ئي غاړه کیښوده ، پس
له هغه به هوسو او ګیدړو او سیٖو او لونبړو په کوډ کښ یو تن په پټه

زمرِي په سبب سره ډير تنګ وُو او ګذران ئې سخت وه ❊ يو وار ئې مصلحت وکړ ټول ښناور هغه زمرِي له راغلل او ور ته ئې وُويل چه مونږ به په خوښه مره تا له وظيفه مقرره کړو نو ته په ورځ ورځ خپله وظيفه آخله او زياتي په مونږ غرض مه لره چه مونږ په آرام سره عمر تيرُوو ❊ زمرِي وويل چه ښنا ئِسته خبره کوئِ مګر ځما باور نه کيږِئ ځکه چه په دي زمانه کښ ما له هيڅ نه خير نه دي سوندي بلکه هر چا را سره په قدر قدر بد کړي دِي ❊ ښناورو ور ته وُوِ چه توکّل ښکار دي او که ته ډير کوشش وکړي خو له نصيب به هيڅ زيات نه کړي ❊ زمرِي وُويل چه ښه وائِ توکّل ډير ښه ځيز دي ليکن کسب کول هم سنت دِی نو خواه مخواه سړِي له مناسب دِي چه هسي کښيناستل نه کوِي ❊ ښناورو ور ته وُويل چه رښتيا خبره دا دَه چه سړِي يقين کم لرِي نو توکّل ئې هم کمزوري وي ❊ زمرِي وُويل چه شم دا هسي خبره دَه لکه چه تاسو وائِ مګر چه سړِي له کوټي راکوزيږِي نو په انډپايه راکوزيږِي او په يو يو دستګي ښنه بږدِي داسي نه کوِي چه ګُنډ په يو وار ځان کوز غورزوِي ❊ نو معلوميږِي چه عقل او سترګي د سړِي عبث نه دِي بلکه په هر څه کښ خداي فايدي پيدا کړي دِي ❊ په سترګو

تر نمابنامَ پُې پوې وکړه خو خاوند پُې ور پسې لاړ نه شه ٭ ده چه پښې واړاوه
او تخم پُې وکاره نوکور ته را روان شه ٭ چه څه موده تيره شوه نو خاوند
پُې ور ته وُويل چه لقمانَ څَه چه لاړ شُو چه د پښې ننداره وکړُو ٭ لقمان
وُوړ چه ډيره ښَه دَه دواړه سره روان شول ٭ چه پټې له ورغلل خاوند
پُې تماشه کوله چه پُې وکتل اوربوشي ور ته ښکاره نه شولې ٭ و پُې ويل چه
لقمانَ دا زرغونه خو د اوربوشو نه دَه دا تيغونه خو د بل څه دِي ٭ لقمانِ
حکيم ويل چه هو صاحبَ دا غوښت شړي دِبي هغَه اوربوشي ما نه دِي
کرلي ٭ خاوند پُې وُويل چه دا څه سبب دي ما خو تا له اوربوشي در کړي
دي او تا غوښت کرلي دِي ٭ لقمانِ حکيم ويل چه صاحبَ خير دي مه
خپه کيږه خداي مهربان دي اوربوشي به وشي ٭ خاوند پُې وُوړ چه ربښتيا
وايي خداي مهربان دي ولي تا غوښت کرلي دِي نو څنګه به اوربوشي وشي٭
لقمانِ حکيم وُويل چه صاحبَ لکه چه ته خوب د غافلانو شان کوي
او مرتبه د صالحانو شان غواړي ٭

# حکايت نه ويشتم

په يو ځنګل کښې زمري ډيره پيرلي وَه او د هغَه ځنګل ښکارو د هغه

ئې ؤوِ چه پاچه صاحبَ که د آخرت دپاره څه توښه طيار روي ✣ هغه ور ته
ؤويل چه قرار شه خوب راځي خداي به فضل وکړي ✣ لقمانِ حکيم بيا
هغه خپل ځاي ته لاړ شه چه صبا شه بيا راغي ويل ئې چه اي صاحبَ
مهربانَ سړي او چارپايان او مرغان ټول د خداي ذکر کوي نو که سنا څه
نيکي په نيت کښې وي نو دا ئې وخت دي ✣ هغه ور ته ؤوِ چه لکوټي م
پريږده چه آرام وکړم ✣ لقمان ترِ لاړ شه د صباح لمونځ ئې اداکړ خپل وِرد
وظيفه ئې پوره کړل نو خاوند ئې پاڅيد لقمانِ حکيم ته ئې يوي او جغ
او سسپار او سسپارکوري او چوکه او سربانډي طيار کړل او د تخم کوڼي
کښ ئې وله لس سيَر اوربوشي واچولي او غوايان ئې د قلبي ور ته په مخ کښ
کړل ✣ ويل ئې چه څَه په فلاني ځاي کښ له چا نه پوښتنه وکړه ځمونږ
پټي به در ته وښيي نو کيلونه په کښ برابر وباسه او په بيل بيل کيل کښ
تخم په مناسب سره ولونه او يوي کوه يو ساعت له به زه هم درپسې در شم
او که زه در ته شم هم خپل کار وکړه نو کور ته راځَه ✣ لقمان ويل چه
ډيره ښَه دَه چه له کورَ ؤوت د يو ګوانډي کره ور ننوت او هغَه اوربوشي
ئې په غوښتو بدلي کړلي بيا روان شه پټي له ورغي غوښت ئې په کښ وکړل ✣

ویل چه ښکته + چرګ ویل چه کوره که چري ستاسو له ذات سره دایي وکاندي
چه هره ورځ یو یو بیني او حلالوي يُ او سر تر پړیکوي او پوستکي تر
وباسي او په اور يُ وړتوي یا په کټويُ کښ يُ پخوي نو ربښتیا وایه که چري
طاقت دِکیږي نو آسمان ته به والوزي او که نه + چرغ وُویل چه بي شکَ حق
ستا په طرف دي خما تکر هډو دی خبري ته نه وه ادس پوه شوم +

## حکایت اته ویشتم

په کتابونو کښ لیکلي کیږي چه لقمانِ حکیم په اوّل حال کښ مریي وه
په رنګ تور او په شکل ناکاره مګر په هوښیارتیا کښ پوره وه + یوه
ورځ خاوند دیاره د خرڅولو بازار ته بوت ناګهانه یو زمیندار پرِ پیښ شه
له هغه خاوند نه يُ په قیمت سره واخست او خپل ځاي ته يُ بوت +
چه شپه شوله خاوند يُ اوده شه او دي یو خالي ځاي ته لاړ شه او په
ذکر د خداي خپل مشغول وه + هر کله چه دریمه حصه شپه تیره شوله
نو راغي خاوند ته يُ وُویل چه صاحبَ پاڅه که جنتَ ګټې او له دوزخ
ځان ساتي + خاوند يُ وُویل چه پریږده چه خوب وکړم رب مهربان دیا+
دي لاړ شه چه دریمه حصه شپه نوره هم تیره شوه بیا راغي خاوند ته

شوکیري وله ورکوي مطلب دا دي چه په قسم قسم عذابونو يې عذابوي او
بیا چه سترګې يې پرانځي نو لږه لږه غوښه وله ورکوي تر هغه پوري چه له
سري نه نه ويريږي ، نو بیا په کښ لوي مزي واچوي او په چرګ یا په تنزري
یا په زرکه یا په سبسۍ یا په قارغه یا په ښاروڼۍ یا په نوړز یا په چرچڼره يې
وریریږدي ، او په هغه ښيز کښ يې هم تار آچولي وي او وزر يې تړ وکښلي
وي نو دي خود وږي وي په ډيره مینه سره يې ولسي خاوند يې په تلوار
پسي راشي او هغه ښيز تر خلاص کړي ، بیا چه ښه آموخته شي نو مزي
تړ وباسي او په مرغۍ پسي يې پریږدي او ښکار پر کوي او کله کله داسي
طرف ته والوزي چه له نظره او د لیدو له حده بهر شي او که نه راشي
نو لاس پر د هغه نه رسیږي او سره د دي ټولو کارونو چه ما در ته ووې
بیا هغه خاوند له راشي او بل طرف ته نه ځي ، نو ته ګوره چه مونږ څنګه
وفادار یو او نمک حلال یو ، چرګ چه دا خبره واوریده نو دومره يې وخندل
چه له ډیري خندا نه په شا لاړ شه ، چوغ ور ته ووې چه چرګ دا په څه
سبب دومره خندا کوي ما څه خطا خبره وکړله او که دروغ م ووې ، چرګ
ووېل چه هسي ستا په دي ناپوهۍ پوري خندا راغلله نو م وخندل ، چرغ

آخلي، دریم هغه چه ویل او کول يې دواړه ښه وي، څلورم هغه چه له کبر ځان ساتي، پنځم هغه چه عقل يې په قهر غالب وي، شپږم هغه چه بې طمع سخاوت کوي، اووم هغه چه ادب ناک وي، اتم هغه چه دوست د صالحانو وي، هغه سړي چه لاړ شه او په دې خبرو يې عمل وکړ نو ډېره خوشحالي سره له سفر بیا راغې او له ناکاره خوی بالکل خلاص شه،

# حکایت اووه ویشتم

د چرګ او د چرغ سره آشنائي وه ډېره موده يې سره په یوځاي ناسته کوله، یو ورځ چرغ ووېل چه اې چرګه ستاسو اصل ډېر بې وفا دي او ډېر بې پت دي، چرګ ور ته ووېل چه دا څه وايي په موږ کښې کومه بې وفائي او بې پتي ده، چرغ ووېل چه زه وینم چه دا خاوندان تاسو ته اوبه په لوښو کښې ږدي او جوار غنم اوربشي د ډډې پرتې ور ته اچوي او سره د دې تاسو له دوي نه داسې تښتي چه نور پرې نه کېږي، او موږ دې ته چه ځموږ نه سړیو چه دې سړو له به لاس ور شي که باز که باښه وي که ښکري وي که کېږه وي که جُرّه وي که چوز وي که

... د ... خو دوي خوږ اول ستړي وکړي او خوراک اوبه تر منع کړي او

نه ید بوي ژخي ٭ هغه ویل چه نه ما خو هیڅوک ولي نه دي ٭ بادشاه وُوِ چه
تا هغه ورځ ولي په خولي باندِ لاس کښیښود چه ما ته را نزدي شوي ٭ هغه
وُوِ چه ما له هغه فلاني سړي پیاز راکړي وه نو ما ویل چه هسي نه وِي چه
بادشاه له بوي ورشي ٭ بادشاه وُوِ چه رښتیا وایي بدان دخپلي بدیٔ جزا
پخپله مومي هغه ته خپله بدي ورسیده او ته ور ځه خپل آواز په
هغه شان کوه ٭

# حکایت شپږ ولیشتم

یو سړي په سفر روانیده نو له یو حکیم ته ئي پوښتنه وکړه چه له چا
سره ملګیرتیا کوم او له چا نه ځان ساتم ٭ حکیم ور ته وُوِ چه له اته
ډنګ سړو نه په ډډه ګرزه ٭اول هغه چه احسان نه مني ٭ دویم هغه چه
بي سببَ قهر ورځي ٭دریم هغه چه له آخرتَ بي پروا وِي ٭ څلورم هغه چه
تنګ وِي ٭ پنځم هغه چه دروغګوي وِي ٭ شپږم هغه چه شهوت پرست
وِي ٭اووم هغه چه بيحیا وِي ٭ اتم هغه چه بي هیڅ په خلقو بد ګمان
کوي ٭ او د اته قِسمَ سړو په دوستیٔ پسي ګرځه ګروزه ٭ اول هغه چه
په نیکیٔ قایل وِي ٭ دویم هغه چه له آشنا نه په سختیٔ کښ لاس نه

هيڅ څيز د پاره نه ورکاوه ♦ چه دي روان شه نو هغه چغلي‌خور ور پسي
لاړ شه او ور ته يُ وُويل چه دا کاغذ ما ته وښينه ♦ هغه سړي وله
کاغذ ور کړ چغلي‌خور روان شه کاغذ يُي هغه امير له ور کړ ♦ چه امير
کاغذ ولوست جوړ جلاد يُي را وغوښت او حکم يُي ور ته وکړ چه دا سړي
مړ کړه او پوستکي يُي وباسه ♦ چغلي‌خور وُويل چه ولي داسي کويُ ♦ امير وُو
چه د بادشاه حکم په دي شان شوي دي چه د کاغذ په دړ تلو دا سړي
ووژنه ♦ چغلي‌خور وُويل چه واړ وکړه دا کاغذ د بل چا د پاره شوي دي خُم
چه هغه راولم ♦ امير وُويل چه دا په کښ بادشاه نه دِي کښلي چه کُمنڊ
وار ور ته وکړه ♦ پس له هغه جلاد ور پاڅيده او سر يُي تړ پړي‌کړ او پوست
يُي ور نه وکښه او له بوسو يُي ډک کړ بادشاه له يُي ور وليګه ♦ چه صبا
شه هغه سړي بيا په دستور خپل راغي او د يُي ويل چه د ښکانو سره
مناسبه دَه چه سړي نيکي وکړي او د بدانو سره دِ سړي بد نه کړي په دا سبب
چه هغه خپل خوي د هغه ډير دي ♦ بادشاه ور ته حيران شه و يُي ويل چه
هغه کاغذ دِ څه کړ ♦ سړي وُو چه تلابي سړي راغي له ما نه يُي وغوښت
جوړ هغه له م ور کړ ♦ بادشاه وُيو چه تا ويلي وُو چه د بادشاه له خولي

ډېر په قهر شه او وئي ويل چه څنګه به دا خبره معلومه شي * هغه
چغلي‌خور وويل چه بادشاه دِ ئي ښان ته را وبولي نو چه دي بادشاه ته نزدي
شي نو دا ئي ننه دَه چه په خپله خوله به لاس کيږدِي * بادشاه وُويل چه
خير اوس ته بي‌غمَ شَه زه به دا حال معلوم کړم * او دغه چغلي‌خور چه
لاړ شه نو هغه سړي ئي را وغوښت په خپل ښاي کښ ئي ميلمه کړ چه
ډوډيِ ئي وله راوړله نو پياز ئي ور سره هم کيښود * چه ده ډوډيِ وخوړله
نو بيا روان شه دلبار له ورغي او په هغه خپل ښاي ودريده او آواز ئي
وکړ چه دښکانو سره نيکي کوه څکه چه بدانو له خپله بدي بس دَه *
بادشاه ور ته وويل چه دلته راشه خبره در ته کوم * چه دغه سړي ور
نزدي شه نو په خپله خوله ئي لاس کښيښو دپاره د دي چه بادشاه له د
پياز بوي ور نه ړشي * د بادشاه يقين راغي چه هغه سړي رښتا ويل جوړ
زر زر ئي يو خط وليکه او يو امير ته ئي د دغه سړي په لاس وليکه او
په هغه خط کښ ئي کښلي وُو چه هر وقت چه دا سړی در ورسيداه نو
حلال ئي کړ او پوستکي ئي وباسه او له بوسو ئي ډک کړه بيا ما ته ئي را
واستوه * او دستور د بادشاه دا وه چه کاغذ به ئي بغير له انعامُ بل د

بادشاه ته په پټو او په ظاهرو کارونو خبر يي د دنيا طالبان دِ خپلو
کارونو ته درتسول نو د آخرت طالبان هم خپلو مطلبونو ته ورسوه اي ځما
پاک خدايَ زه ډير عاجزيم ځما مراد حاصل کړه ✦ هر کله چه خاوند يي دا
حال وليد زړه يې صبر نه شه ورغي د هلک په پښو پريوت او لاسونه
يې کښلول ✦ هلک پورته وکتل و يې ويل چه اي مهربانَ خدايَ ځما پرده
ځيري شوه نور په دي ژوندون بانډ خوشحال نه يم ✦ خاوند يې لاسونه
ينولي دُه چه مخ ته يي وکاته دهلک ساه ختلي وه ✦

# حکايت پنځه وبشتم

يو سړي وه چه د بادشاه په دلبار کښ به وډريده او دا آواز به يې
کاوه چه د نيکانو سره نيکي کوه او بدانو ته به خپله بدي پخپله ور
رسيږي ✦ او د يو سړي ور ته په دي خبره ډيره کينه پيدا شوله او په
زړه کښ يي دا فکر وکړ چه داسي کار وکړم چه دي د بادشاه له دلبارَ
منع شي ✦ نو بادشاه له ورغي او ور ته يې ووېل چه مهربانَ دا سړي
چه دلبار له راځي او دا آوازونه څيشه کوي د ده له خولي نه آوريدلي
شي دي چه خلقو ته وايي چه د بادشاه له خولي نه بد بويي ځي ✦ بادشاه

آخوندم * بيا ده ور ته وُوِ چه څه به خوري * هغَه وُوِ چه ستنا څه خوښ
وِي هغَه به خورم * دي سمِي په زړه کښ وُوِيل چه دا خو ډير بنا ئِيسته
مريي دي * جوړ د خاوند سره ئِي بيعَ وکړه تر نه ئِي واخست * بيا هغه
مريي ور ته ويل چه يوه خبره زه هم کوم که ستنا رضا وِي * ده وِ چه
بي شک وُوايه * هغه وِ چه زه به د ورځي ستنا خدمت په ښه شان
کوم خو د شپي را باندِ غرض مه لره * ده ويل چه ډيره ښه ده * نو ور سره
هغه مريي روان شه دواړه کور ته لاړل * هر څه چه ده به ور ته ويل
هغه به کول او چه شپه به شوه هلک به لاړ شه تر سحر پوري به نه وه
چه سحر به شه بيا به راغي * حاصل دا دي چه هم په داسي شان به ئِي
مدام گذران کاوه * چه څه قدر مُده تيره شو نو دي خاوند ئِي فکر وکړ
او د ځان سره ئِي وُوِ چه دا حال خو معلوم کړم چه دي د شپي چرته
ځي * نو يوه شپه ور پسي روان شه که گوري په يو زوړ نميدلي وران قبر
کښ ننوړ ور ته ښکاره شوه * چه دي ور نزدي شه يو فانوس ئِي وليد چه
شمعَ په کښ بليدله او دغه هلک ولاړ وه نمونځ ئِي کاوه * چه له نمانځه
نه وزگار شه نو خداي پاک ته ئِي زاري کوله اوويل ئِي چه اي د بادشاهانو

هیرول دریمه هغه په ځان پسې زغلول او ستړي کول څلورمه اسباب
د ځان سره تبنتول پنځمه په ځان باندې دا گمان کول چه زه به یواځې
گذران وکړي شپږمه همیشه په هغه گناه کښې پاتې کیدل او توبه
ور نه نه ویستل او خاوند له بیرته نه ور تلل * آس وویل چه اوس پوه
شوم چه زه له دې عذاب دوچند لایق یم * خنزیر وویل چه اقرار د وکړ
او ځان ته د ملامت ووایه نو اوس به د خلاص کړم * بیا یې هغه تمې
پریکړې او آس یې له بند خلاص کړ *

## حکایت څلیر ویشتم

په وړمبي زمانه کښې یو سړی وه چه یوه ورځ بازار ته د مرېي آخستلو
دپاره لاړ شه * چه یو دکان له ورغی څه گوري چه یو مرېي ولاړ دي *
ده ور ته ووې چه هلک ستا خوښه دَه چه د واخلم * هغه ووې چه زه مرېي
یم خما هیڅ اختیار نشته * بیا ده ور ته ویل چه نوم د څه دي * هغه
ویل چه ستا خوښ وي هغه نوم را ته وایه * بیا ده ور ته ووې چه څه
کار به کوې * هغه ووې چه د رضا وي هغه کار را باندې کوه * بیا ده ور
ته ووې چه څه رنگ جامه به آغوندې * هغه ویل چه څه را کوې هغه به

ښواب کښ وُويل چه دا ټول د دي او د واکو او د تسمو سبب دي ٭
بيا آس ور ته وُوِ که لکوټي ما له دي بند خلاص کړي نو ډير ښه به وِي
ثواب به دِ وشي ٭ خنزير ور ته وُوِ چه ښه گناه دِ کړي وَه چه داسي
حال در ته پيښ شه ٭ آس وُويلُ چه زه خو داسي هيڅ گناه ځېل ځان ته
نه گنړم چه د دومره سختئ لايقه وِي ٭ خنزير وُوِ چه داسي نه دَه يا نه
دروغ وايي او يا جاهل يي نه پوهيږي چه گناه ښه نه وايي نو که دروغ
وايي خو زه دِ نه خلاصوم پرېږده چه کړيږي او بيا مړ شي او نه دِ آشنائي
کوم ښکه چه خلق وايي چه د بدخويي سړي سره آشنائي نبه نه دَه د
سړي خوئ خرابيږي ٭ او که نه پوهيږي نو بيا ستا دپاره دا بنده ښه دي
ښکه چه ناپوهي داسي څيز دي چه له دي سختئ نه به دِ په زيانه سختئ
کښ پرېباسي ٭ بيا آس ور ته زاري وکړله ويل ئ چه ما خلاص کړه ٭
خنزير ور ته وُويل چه ما ته ربښتنيا وُوايه نو به دِ خلاص کړم ٭ آس
ور ته له سَر ځېله قصه شروع کړله او حال ئ ور ته وُوايه ٭ نو
خنزير وُويل چه اوس پوه شوم چه ته لوي جاهل يي او په تا کښ شپږ
گناهَ جمع شوي دِي ٭ ومبنئ د خاوند پرېښودل دويمه د هغه احسان

زي خوله يُ وابښو ته و نه رسيدله ۰ چه نيت يُ د رغړيدلو وکړ زين پرِ د
ياس پروت وه هغه کارهم برابر نه شه ۰ چه په يوه دډه به يُ آرام کاوه
يو رکاب به ترِ لاندِ شه په بله دډه به بل رکاب ور ته وړاندِ شه دا خبره
هم ور نه شوه ۰ تمامه شپه لکه د څوکيدار په ولاړي پرِ تيره شوله ۰
صبا له بيا په هغه ميدان کښ حيران گرزيده ناګهانه يوه وله يُ په مخ
کښ راغله چه دي ورکړ شه هغه وله ټوره وه اويه په کښ ډيري ري
تول اسباب يُ په اوبو کښ لوند شه ۰ چه په ډير کوشش سره بحر راووت
او ښو پرِ ولګيده هغه تسمی د اسباب د ده تولي د اوبي څرمني وي څه
وچي شوي نو ډيري کاکي شولي ۰ بيا هر ځاي چه به د ده پد تسمه لګيده
هغه ځاي به غوڅيده ۰ غرض دا دي چه کيږي ته يُ زخم ورسيده ملا
يُ خوږ شوله خټ يُ غوڅ شه چه څه سختي په دنيا کښ ياديدله هغه
ور ته پيښه شوله ۰ چه ډير ډيري شه او کمزوري شه او عاجز شه نو
په يو ځاي باندِ ولويد ۰ ناګهانه خنزير ور باندِ پيښ شه اول خو ور
ته په قهر شه ولي چه د ده خواره ونږ يُ وليدله نو زړه يُ پرِ وسه او
ترِ يُ پوښتنه وکړله چه دا ولي دِ دابي حال شوي دي ۰ آس ور ته په

شپه او ورځ به په خدمت ورته ولاړ وه * سحر نمازدیگر به ئي لمباوه کراره
به ئي په وقت ګوله د اوربوشو د آرداوي غور به ئي په ښه شان
کاوه او ناري به ئي مصالهدار وله مدام طیاراوه او هره ورځ به ئي د
ولو په غاړو باندِ په شنو شنو واښو کښ ګرزاوه اوچه چرته به دیر
واښه ښېښ شول نو هلته به ئي لوبه رسئ په کښ واچوله او موزئ به ئي
ټک واهه او رسئ به ئي په موزِئ پوري وتړله نو دغه آس به ئي په هغه
واښو کښ پرېښو ښیا دي به په کښ کله ځرېده او کله رغړېده او کله به
ئي لګئ پورته کړله ټوپونه به ئي وهل او خاوند به ئي په تماشه خوشحالېده *
یوه ورځ له ورځو وَه چه دي سړي دغه آس بهر بوت ناګهانه چه تږکوز شه
جوړ آس وُدنګل سرکښئ ئي وکړله زین واګي جلب ترسري واړه اسباب ئي
د ځان سره وتښتاوه * خاوند ور پسي تمامه ورځ وزغلېده مګر هغه آس
وه او دي سړي وه لاند ئي نه کړي شه آخر سړي ستړي شه او آس لاړ له
سترګو ئي فنا شه * چه ماښام شه سړي غریب ستړي ستومان کور ته
راغي بيطاقت په کټ کښ پرېوت * او په آس باندِ چه وقت د دانې شه نو
وږي شه چه خوله ئي وانبو ته ښکته کوله واګي ئي په زبن کښ لښتي

لاړ شه او حال خپل ئې ور ته ووايه + قاضي ور ته ووِ چه ته چا ته شور
مه کوه زه به ستا غور وکړم + يو څو ورځې پس قاضي هغه صراف را
وغوښت او ور ته ئې ووِيل چه زه پواځي يم او کارونه را باندې ډير دي را
ته پوره کيږي نه + نو دا م په زړه کښ فکر وکړ چه ته يو ديندار سړي
يي چه تا وکيل کړم نو ډير به ښه وي + صراف دا خبره قبوله کړله او ډير
خوشحالَ شه + چه کور ته لاړ شه نو قاضي هغه سړي را وغوښت او ور
ته ئې ووِيل چه اوس ورشه خپل مال ترِ وغواړه + سړي صراف له ورغي
خوچه هغه له ووايه وليد ور ته ئې ووِ چه خوانَ هر کله راشه ډير ښه
وشو چه راغلي ستا مال خمونږ کره وه ليکن خما له فکر تلي وه بيګاه را
ياد شه + چه مال ئې وله ورکړ نو بيا په اميد د وکيل تروب قاضي له لاړ
شه + چه قاضي وليد ور ته ئې وُوِ چه نن بادشاه له تلي وم په دلبار کښ
م وارويده چه بادشاه تا ته يو لوي کار سپارِي نو ته اميدوار اوسه چه
مرتبه به دِ ډيره لويه شي او زه به خان له چرته وکيل بل وکورم +

## حکايت دري ويشتم

نقل دي چه يو سړي آس ساتلي وه او ډيره مينه به ئې ور سره کوله او

پرِ زیاته شوه او مرګ ته نزدې شه نو هرچا ویل چه اوس ئې ځانکندن
دي مړ به شي ۰ ناګهانه چا وله طبیب راوست چه طبیب ور ته وکتل وِ چه
معلومیږي چه خوراک دِ ډیر کړي دي ۰ ده وِ چه هو زه چا میلمه کړي وم د
هغه کره مِ څه قدر ډوډیٔ خوړلي دَه ۰ طبیب ور ته وِ چه ظالمه که کور
پردي وه نو ګیډه خو دِ خپله وَه که نه وَه ۰ ده وِ چه بي شکه دا رښتیا وایې
لیکن نه را نه چا ډوډیٔ پورته کوله او نه ئې تر زه پاڅولم او پخپله خود
کبر کیده زه به له پخي ډوډیٔ نه څنګه پاڅیدم ۰ طبیب ویل چه خیر څه
وشوه هغه وشوه لیکن اوس داسي دارُو پکار دي چه ته وجارباسي ۰ ده
وِ چه دا خوراک خو څما ته زړه کیږي که چري داسي دارُو دي چه دا هضم
شي خو ښه دَه او که نه وي نو خیر دي په مره کیده مرګ بهتر
دي او دومره زیان مِ له مخَ نه کیږي ته ور څَه رخصت يي ۰

## حکایت دوه ولیښتم

یو سړي یو صراف ته ډیر مال وسپاره او په سفر لاړ شه ۰ چه له
سفر را وګرزیده نو له صرافَ ئې مال غوښت صراف منکر شه
و ئې ویل چه ما له دِ مال هیڅ و راکړي نه دي ۰ هغه سړی قاضي له

ئي يا وُوژني او يا ور ته توبه وباسي * چه سړي دا واوريده اوچت پاڅيده کوتک ئي واخست خو چه يو دوه گذار ئي وله ور کړل ښځي توبه کړله او چپ کښيناستله او سړي له مرګ خلاص شه *

# حکايت شلم

له يو حکيم نه نقل دي چه ويلي ئي دي چه له هر ځناور نه رم يو يو خوي غوره کړي دي * چا ور ته وويل چه په سپي کښ در ته کوم خوي ښه ښکاره شوي دي * هغه ووِ چه ډيره مينه په خاوند باندِ * بيا ئي ور ته وُويل چه په خنزير کښ دِ کوم خوي خوښ دي * هغه وُوِچه وختي په خپل کار پسي روانيدل * بيا ئي ور ته وُويل چه په قارغه کښ در ته کوم خوي غوره معلوميږي * هغه وُوِ چه له هر چا ويريدل * بيا ئي ور ته وُويل چه د پيشو در ته کوم خوي ښايسته ظاهريږي * هغه وُوِ چه ډيره زاري کول په وقت د سوال کښ *

# حکايت يوويشتم

يو سړي وه چه ډير دولت ئي لاره ولي دومره شوم وه چه خپل ځان ته به ئي خپله ډوډئ نه زړه کيدله * يوه ورځ چا وله ميلمستيا وکړه چه دي

چه حلال ئې کړُو هسي نه وِي چۀ مړ شي ٭ غوايه وُوِ چه اوس د دي خبري څه علاج وکړم ٭ خر وُوِ چه کيا وخوره بيا هيڅ وسواس دِ نشته ٭ چه غوايهٔ کياه ته خوله ښکته کړله سړي په خندا شه د دوي په خبرو پوري ئې وخندل ٭ چه سړي ته خپلي ښځي وکتل نو ور ته ئې وُوِ چه ولي خاندي ٭ سړي ويل چه هيڅ نشته ٭ ښځي ويل چه يا م له دي خندا نه خبر کړه او که نه وِي نو دره خبري دِي يا ليوني شوي او يا دِ بله ښځه خوښه شوي ده ٭ ډېره دير څه وکړل خو ښځي ور ته وُوِ چه حرام شه که دِ پريږدم ٭ چه پوره نه شوه نو سړي ويل چه وار کوه چه باري زه وصيت وکړم نو به حال در ته وُوايم ٭ چه ده په وصيت شروع وکړه نو غوايه اوخر له غمه خوراک او اوبه پريښودل او چرګ بيغمه ټوپونه وهل او چني ئې ويستلي او خوشحال ګرزيده ٭ غوايه او خره ور ته وُويل چه څموږ خاوند مړ کيږي او ته داسي خوشحاليږي ٭ چرګ ويل چه پريږدئ چه مړ شي ٭ هغو ور ته ويل چه ولي داسي وايې ٭ ده ويل ځکه چه څما د لاندِ شل ښځي دِي او ما ټولي په ادب کړي دِي او د ده يوه ښځه ده هغه هم ده په ادب کړي نه ده ٭ هغو وُوِ چه دا به څنګه وشي ٭ ده وِ خو کوتک دِ را واخلي او پر دِ را وګرزوي چه اوس

شپه شوه د ده په کورکښ یو غوایه او یو خر او یو چرګ وُو ÷ هغه خر له غوایه نه پوښتنه وکړه چه وایه څوانَ ورځ دِ څنګه تېره شوې دَه ÷ غوایه وېل چه ډېره سخته دَه ÷ خر ور ته وُوِ چه که ستا رضا وِي نو زه به تا ته یو چل وُښیم چه له ډېرَ کارَ خلاص شې ÷ غوایه وېل چه ډېره ښه دَه زه به ستا خبره وُمنم هو څه چه ته وایې ÷ خر وُوِ چه مصلحت دا دي چه بېګا له ګیاه مه خوره ÷ غوایه وېل چه ښه دَه جوړ د شپې ئې هیڅ خوراک و نه کړ ÷ او دغه سړي د ذواړو خبري آورې ÷ چه صبا شه نو سړي وُوېل چه غوایه جوړ نه دي نن باري په خر بانڊِ اسباب واچوئ چه د غوایه په بدل کښ دي لاړ شي ÷ خر چه لاړ شه ورځ ئې تېره کړله چه شپې له ځپل ځاي له راغي نو غوایه تِرِ پوښتنه وکړله وېل ئې چه وایه څوانَ ورځ در بانډِ څنګه تېره شوې دَه را ته نسکاریږي چه تا هیڅ کار نه دي کړي ÷ خر وېل چه ئې شکه اول را بانډ ډاسې سختي راغلې وَه لکه چه پرون په تا وَه لیکن بیا خیر شه څکه چه دوې ستا د حلالولو په فکر کښ شول نو زه خود له کارَ خلاص شوم ÷ غوایه وُوېل چه ما ولې حلالوي ÷ خر وېل چه نور هیڅ خبر نه یم خو دوي سره په کور کښ وېل چه دا غوایه ګیاه نه خوري راشئ

او سل دا دي چه زه د زکاتي نو نور را نه څه غواړي خپل حق خو تا ته در
رسیدلی دي ✦ هغه سړي قاضي له لاړ شه په تولو قصه يي خبر کړ ✦ قاضي
صاحب هغه ته د خوښت ورته يي وویل چه د ده حق ولي نه ورکوی ✦
هغه وویل چه ده خو خپل حق یخپله له دي همیانۍ نه آخستي دي نو زه
ولې څه ورکړم ✦ قاضي همیانۍ طلب کړله چه وي کتله هم هغه شان
تړلې وه لکه څنګه چه وه ✦ نو بخیل ته يي وویل چه ستا په همیانۍ کښ لس
دینار سل اشرفۍ وي او دا پوره سل دي نو معلومیږي چه دا همیانۍ
ستا نه ده ته ورځه په خپلې همیانۍ پسي ګرزه او دا همیانۍ دي سړي له
ورکړه چه څاوند يي راشي نو هغه له به يي ورکړي ✦

## حکایت نولسم

نقل دي چه سلیمان پیغمبر له یو سړي راغي او ورته يي وویل چه ما
ته دعا وکړه چه زه د مرغانو په خبرو پوه شم ✦ هغه ورته وویل چه د مرغانو
په خبرو به پوه شي ولي که چا ته د حال ووایه نو په هغه ساعت به مړه
شي ✦ هغه سړي وویل چه ډیره ښه ده څوک به نه خبروم ✦ سلیمان ور
ته ووچه ورځه په خبرو به د هر څیز پوهیږي ✦ سړي کور ته روان شه چه

دروديځ لري كړله او چه شات يې لري كول ميلمه پرِ وراغي شات يې لري نه
كړي شول ✦ ليكن د بخيل گمان دا وه چه دي به يواځي شات نه خوري نو
ور ته يې ويل چه خوره كه نه كه شاتو نه دِ مينه كيږي ✦ ميلمه ويل چه
بنه دَه شات خو ډير بنه څيز دي ولي به يې نه خورم ✦ جوله لاس يې
پوري كړ شات يې ځټل چه څه قدر يې وځټل نو هغَه بخيل ته يې
وويل چه بي شاتَ بنه خوند لري ✦ بخيل ويل چه رښتيا دِي مزه يې شته
خو ډير يې مه خوره د سړي زړه سيزي ✦ ميلمه ويل چه بي شكه ډيره
بنَه وايي زړه سيزِي ليكن ستا زړه سيزي ✦

# حكايت اتہ لسم

له يو بخيل سړي نه سل اشرفئ په هميانئِ كښ چرته وركي شولي كه ډير
ربړ يې ور پسي وكړ خو و يې نه موندلي ✦ نو و يې ويل چه هر چا چه وموندلي
او ما له يې راكړلي نو په خوښه به لس اشرفئ په كښ هغه له وركړم ✦ ناگهانه
يو بنه سړي هغه هميانئِ وموندله او هغه بخيل له يې وركړله او ورته يې
وويل چه ما له شغه لس اشرفئ چه تاويلي وي راكړ ✦ بخيل ور ته
وِ چه په دي هميانئِ كښ خو لَس د پاسَ سل اشرفئ وي لس در ورسيدلي

دي خبره خبر کړ . هغه بيا ډِوچه په دي کښ به خير وِي . خلقو وِ چه
عجيبه دَه سپو به شوکيږ کوله چرګانو به بانګونه ويل وقت د صبا به معلوميده
نو د دوي په مرګ کښ کوم خير دي . هغه وِ چه په پټو کارونو خداي
ښه پوهيږي خمرنز علم په دي خبرو نشته . په دريمه شپه
خلقو اور بلاوه ليکن اور نه بليده او لنبه ئي نه کوله . هر چا ډِيل چه
خداي دِ خير کړي نه پوهيږو چه څه بلا پيښيږي . ناګهانه له بل طرف
... لښکر ور وخوت ګير چاپير کلي ئي تول وسيزل مال ئې ور نه لوټ
... چه د دغه خلقو کلي ته نزدِي شول د لښکر خلقو په کور کښ سره
... رڼا شته او نه د سپو غپا شته او نه د چرګانو بانګونه شته
... خلق نشته تش کلي خالي کوروته به څه کړو . په دي ګمان
... کلي ته خير شه . دهغه ښه سرِي خبره رښتيا شوه .

# حکايت اولسم

... وعم ئي غم زياتيږي يعني دوه تاوان ور ته
... چه دوديږ ئي د شاتو سره خوړله ناګهانه
... وکړ . دد په تلوار سره هغه

نه وراندِ کوي ٭ چه دا فکر ئې وکړ نو د م
او بې غمه په يو طرف روانه شوله ٭ په دغ
د غره له سرَ راکوز شه او د مرداري
ناګهانه په ډوغل کښ ولويده ٭ ښکارِي
کمان ئې وشه چه ګڼره لومبړه ور پرېوتل
ور ودنګل ٭ پړانګ چه وليد کمان ئې
جوړ په خيټه ئې وله پړق ورکړ دوه
په دام د هلاک کښ بند شه او لومبړه

## حکايت

په عربو کښ يو ښه سړي وه چه واړه
نه پوښتنه کوله او د هغه په نصيحت
ناګهانه چه دي په کښ اوسيده د هغ
شول ٭ صبا له خلق هغه ښه سړي له
کړ ٭ هغه وُويل چه په دي کښ به خير
بانګيان چرګان مړه شول ٭ خلق بيا صب

ـرداري سودا ئې له زړه نه لري کړله
ـه ساعت کښ يو وږي پړانګ
ـدي پر ولګيده چه خوراک له ورته
ـه د پړانګ د غورزيدو غرب واوريده
ـه جوړ په ټلوار راغي او ډوغل ته ئې
ـړشه چه ګُندِ ما له خوراکَ منعَ کوي
ـړق ئې کړ ٭ ښکارِي په سبب د حرص
ـه سبب د صبر له بلا نه خلاصه شوله ٭

## شپاړسم

خلقو به په هر کار کښ له هغه
باندِ به هر چا عمل کاوه ٭
ـه خلقو يوه شپه ټول سپي مړه
راغلل او د سپو له مرګَ ئې خبر
ـر وِي ٭ بله شپه د هغه کلي ټول
ـاله راغلل هغه ښه سړي ئې په

کوره چه زه ځنګه په کښ ځان ځایوم جوړ هغه ور ته توبره وښوله او
مار په کښ ور ننوت لومبړي سواره ته ووې چه تلوار کوه د توبري خوله
کلکه کړه چه مار دې نه خلاص نه شي جوړ سواره توبره وښوله او په زمکه
ئې وهله وهله چه مار ئې مردار کړ او ځان ئې تر خلاص کړ ۰

## حکایت پنځلسم

حرصناک مدام ګرفتار وي او صبرناک همیش په قرار وي ۰ لکه یو ښکاري
په صحرا کښ ګرزیده یوه لومبړه ئې ولیدله چه ډیر ښایسته رنګ او صاف
ویښته ئې ور ته ښکاره شول ۰ په زړه کښ ئې فکر وکړ د ئې ویل چه که
دا لومبړه ونسم او پوستکي ئې ترې وباسم نو امید دي چه به ډیر قیمت به خرڅ
شي ۰ نو په دي طمع په هغې لومبړي پسي روان شه او غار دهغې ئې معلوم
کړ ۰ بیا ئې ور ته یو ډدغل وکنوده او د پاسه ئې پر وابنه واچول او د هغه
وابنو د پاسه ئې یوه مرداره کښیښوده او دي ور ته په یو ځای کښ پټ
شه ۰ چه لومبړه له غاره را ووتله او بوي پر د مرداري ولګید ۰ په هغه طرف
روانه شوله لیکن د ځان سره ئې وویل چه بوي د مرداري خو را بانډ لګیږي
مګر ګمان د بلا هم په کښ کیږي او هوښیاران د وېري ځاي ته ځانونه

په سنا خبره منظوره شي ÷ چه مار يو خوا بل خواه وکاته يوه ونه ئې وليدله و ئې
ويل چه راځه چه دي وني له ور شُو ÷ چه ور نزدي شول نو مار ورته وُوچه
اي وُني بدله د نيکئ څه دَه ÷ وُني وُويل چه په دستور د آدميانو خو بدله د نيکئ
بدِي دَه څکه چه زه دلته ولاړه يم او دوي نمر وهلي ستړي ستومانه راشي
څما په سوري باندِ دمه وکړي چه بيا په آرام شي نو را ته کوري او وايي چه
دغه ښاخ د يوم د لاسټي د پاره ډير ښه دي او هغه څانګه د تبرلاسټي لائقه
دَه او له دغه فلاني ځاي نه به ښي تختي وخيژي او له هغه ځاي نه به
ښي دُرشلي جوړي شي او که آره يا تبر ور څخه وي نو خواه مخواه څه خو را
نه پريکړي اوَ د ځان سره ئې يوسي ÷ مار وُويل چه اوس خودِ مقدمه
بايلله ځان را ته ونسه چه چک در باندِ ولګوم ÷ سړي حيران شه فکر
ئې کاوه ناګهانه يوه لومبړه را ښکاره شوله او د دوي دا خبري ئې وړاه
آوريدلي وي بچوړ دغه سواره ته ئې وُويل چه خوانَ تا د دي مار سره څه
نيکي کړي دَه چه دي در سره بدِي کوي ÷ سواره ور ته ټوله قصه د اور
او د توبري ووېله ÷ لومبړي وِ چه زه نه منم چه دا مار به په دي توبره
کښ ځاي شِي څکه چه دي لوي دي او توبره وړکي دَه ÷ مار وُوِ چه نه

ښه کړي ږو خو بي ښايَ ږو ځکه چه څموږ او ستاسو سره دښمني
پخوانۍ دَه نو څما سره ښه کول ستا د ښان سره بد کول دِي + سواره وُوِ
چه د نيکۍ په ځاي بدِي په هيڅ مذهب کښ روا نه دَه + مار ورته وُوِ
چه زه هم ستاسو په دستور باندِ عمل کوم او تاسو خود دنيکۍ په ځاي
بدِي هميشه کوئ + سواره ووِيل چه دا خبره به هيڅري ثابته نه کړي او که
په دي خبره دِ شاهدان تير کړل نو بي شک زه راضي يم چه ته م وخوري +
مار چه يو طرف بل طرف ته کاته يوه ميښه يې وليده دواړه ور روان شول
چه ورغلل نو مار ور ته وُوِ چه اي ميښي جزا د نيکۍ څه دَه + ميښي
وُوِ چه په مذهب د آدميانو خو جزا د نيکۍ بدي دَه ځکه چه نه د يو سري
کره وم چه څوانه دم او پيۍ م ورکول نو مدار م کيده چه بيا پيۍ م وچ شول
او بي طاقته شوم نو غور يې څما پريښوده او زه يې بهر د ښهرلم چه خو ورځي
بهر وګرزيدم او لګوټي غوښه م جوړه شوه نو پرون يې قصاب راوست او
زه يې پرِ خرڅه کړلم نن به خود قصاب راشي ما به حلالول له بيايي +
مار وُويل چه اوس خو بيه شوي ښان با ته تيزک کړه چه دِ وخيچم +
سواره وُويل چه شاهدان دوه پکار دِي که بل شاهد پيدا شي نو هاله

# حکایت ښوارلسم

هوښیار له مناسب دي چه په زارۍ د دښمنانو نه غلیږي او که نه وي نو په بلا کښ به پریوزي ‡ لکه یو سړي په اوښ سور وه په لار ته ناګهانه یو ځاي ته ورسیده چه هلته په ځنګل باندې اور لګیدلي وه او یو لوي مار په هغه ځاي کښ بند شوي وه چه په هیڅ شان ئې لار د خلاصیدو نه موندله ‡ چه دا سړي ئې ولیده ډیر فریاد او زاري ئې ور ته وکړل او وئې ویل چه که ما له دي اور و باسي نو نهایت مهربانې به وي ‡ سړي په زړه کښ فکر وکړ او و ئې ویل چه مار څو بې شک د سړو دښمن دي مګر نن ورځ ډیر عاجز دي نو بهتره خبره دا ده چه له دي اور ئې و باسم جوړ توبره ئې ور څوړنده کړله او مار په توبره کښ کښیناست سواره توبره راکښله مار ئې له هغه ځاي بهر وکښه ‡ بیائې د توبري خوله پرانستله او مار ته ئې وویل چه اوس ورځه له غم خلاص شوي مګر پس له دي څوک مه آزاروه ‡ مار وویل چه څو تا او ستا دا اوښ و نه چیچم همره به لاړ نه شم ‡ سړي ور ته وویل چه ما خو له تا سره بد کړي نه وو چه ته اوس له ما سره داسي کوي ‡ مار وویل چه بې شک تا

برابر سم شه • بیا طبیب ئې را وباله ورته ئې ویل چه اوس دِ وژنم تا ولې دومره دروغ ویل • طبیب وُوِ څکه چه د بادشاه علاج را ته په بل څیز کښ نه معلومیده • بادشاه ډیر خوشحالَ شه او انعام او خلعت ئې ډیر ورکړ •

## حکایت دیارلسم

ویلې شوي دي چه یو سړي په رنګ ډیر ناکارَ وه او ښځه ئې په صورت ډیره ښائیسته وَه چه د هغې ښځې په شان ښځه په هغَه زمانه کښ نه وه • نو هغې ښځې یوه ورځ هغَه خپل څښتن ته وُوِ چه په قیامت کښ به زه او ته دواړه په جنت کښ یُو • څښتن ورته وُوِ چه ته په کوم دلیل سره دا خبره کوې • هغې ورته وُوِ په دې دلیل سره چه زه ستا ښځه یم او ته څما څښتن یې • هغه ورته وُوِ چه په دا څه رنګُو هر څوک سره ښځې څښتنان دي نو دا به ټول جنتیان وِي څه • هغې ویل چه ته پوره نه شوي زه داسې نه وایم چه ټولې ښځې او خاوندان به جنتیان وِي بلکه زه خپل څان او تا یادَوم په دا سبب چه زه ستا په ناکارَ شکل باندِ صبر کَوُمْ او ته څما په ښائیسته صورت باندِ شکر کوې او جنت له یا هغَه څي چه شکر کوي یا هغَه څي چه صبر کوِي •

# حکایت شوارلسم

هوښیار له مناسب دي چه په زارئ د دښمنانو
نو په بلا کښ په پريوزي * لکه يو سړي په اوښ سو نه غليږي او که نه وي
يو ځاي ته ورسيده چه هلته په ځنګل باندِ اور لګيدلِ وه په لار ته ناګهانه
په هغه ځاي کښ بند شوي وه چه په هيڅ شان ئې لي وه او يو لوي مار
موندله * چه دا سړي ئې وليده ډير فرياد او زاري لار د خلاصيدو نه
و ئې ويل چه که ما له دي اور و ياسي نو نهايت مې ئې ور ته وکړل او
په زړه کښ فکر وکړ او و ئې ويل چه مار ځو بي شک مهرباني به وي * سړي
مګر ښن ورځ ډير عاجز دي نو بهتره خبره دا ده د سړو دښمن دي
جوړ توبره ئې ور خوړنده کړله او مار په توبره کښ چه له دي اور ئې وباسم
راکښله مار ئې له هغه ځاي بهر وکښه * بيا ئې د لښنيناست سواره توبره
او مار ته ئې وُويل چه اوس ورځه له غمَ خلاص توبري خوله پرانسته
دي ځوک مه آزاروه * مار و ويل چه ځو تا او ستا د شوي مګر پس له
همره به لاړ نه شم * سړي ور ته وُويل چه ما ... اوښ و نه چيچم
نه وُوچه ته اوس له ما سره داسي کوي * مار وويل ځو له تا سره بد کړي
ل چه بي شک تا

برابر سم شه + بیا طبیب ئې را وباله ورته ئې ویل چه اوس دِ وژنم تا ولي دومره دروغ ویل + طبیب ورِ څکه چه د بادشاه علاج را ته په بل څیز کښ نه معلومیده + بادشاه ډیر خوشحالَ شه او انعام او خلعت ئې ډیر ورکړ +

# حکایت دیارلسم

ویلي شوي دي چه یو سړي په رنګ ډیر ناکارَ وه او ښځه ئې په صورت ډیره ښائسته وَه چه د هغي ښځي په شان ښځه په هغَه زمانه کښ نه وه + نو هغي ښځي یوه ورځ هغَه خپل څښتن ته وُ وِ چه په قیامت کښ به زه او ته دواړه په جنت کښ یُو + څښتن ور ته وُ وِ چه ته په کوم دلیل سره دا خبره کوي + هغي ور ته وُوِ په دي دلیل سره چه زه ستا ښځه یم او ته څما څښتن یي + هغه ور ته وُوِ چه په دا څه رشُو هر څوک سره ښځي څښتنان دِي نو دا به ټول جنتیان وِي څه + هغي ویل چه ته پوه نه شوي زه داسي نه وایم چه ټولي ښځي او خاوندان به جنتیان وِي بلکه زه خپل ځان او تا یادَوم په دا سبب چه زه ستا په ناکارَ شکل باندِ صبر کوُم او ته څما په ښائسته صورت باندِ شکر کوي او جنت له یا هغَه ځي چه شکر کوِي یا هغَه ځي چه صبر کوِي +

يَ علاج وکړِي که غوښه يُ څه قدر کمه شي ٭ که هر چا به علاج کاوه
د بادشاه غوښه به زياتيدله او وجود به يُ غټيده ٭ آخر يو هوښيار طبيب
پيښ شه چه د بادشاه لاس يُ وښو ورته يُ عرض وکړ چه که د
بادشاه مهربان خوښه وِي نو زه به په علمِ نجوم کښ وګورم هر قِسم دارُو
چه د طبيعت سره برابر راغلل هغه به بادشاه له ورکړم ٭ بادشاه وُوِ
چه ډيره ښَه ده لاړ شَه کتابونه د نجوم تول وګوره چه تا ته ښه ښکاره
شِي هغه دارُو ما له راکړه ٭ طبيب لاړ شه صبا له راغي عرض يُ وکړ چه
د بادشاه مهربان دارُو موقوف دِي ٭ بادشاه وُوِ چه څه سبب دي ولي څما
دارُو موقوف دِي ٭ طبيب وُويل چه په کتاب کښ واِيي چه څلويښت ورځي
د بادشاه ژوندون باقِي دي پس له هغَه به مړ شِي ٭ بادشاه ډير په قهر
شه اوويل يُ چه دارُو موقوف دِي ولي دا طبيب بند کړيُ که چري په دي
موده کښ زه مړ نه شوم نو دي به مړ کړم ٭ طبيب يُ بند کړ او بادشاه
د مرګ په فکر کښ شه شپه او ورځ به يُ خفقان کاوه او خپلوانو دوستانو
به ور سره ژړل ٭ چه څلويښت ورځي تيري شوي د بادشاه زيړ رنګ را ختلی
وه غوښه يُ اوبه شوي وَه خو چه د غوښي بار نرِکم شه نو صورت يُ

ئې ويل چه پي‌بي خبر شه ښښتن دِ تا له طلاق در کوي او بله ښځه کوي + ښځې چه دا خبره واوريدله ډيره خپه شوله + ده ور ته ويل چه ولې خپه کيږې که ستا خوښيږي نو ما له يو دري ويښته د ده د ږيرې د لاندې راوړه چه زه ئې دم کړم نو د ښښتن به تا سره مينه ډيره پيدا شي + ښځې ويل چه ډيره ښه خبره دَه + چه شپه شوه سړی کورته لاړ شه خان ئې په کټ کښې اوده کړ او تماشه ئې کوله چه څه پيښيږي چه د ښځې کمان وُ شه چه دی اوده دی نو د ويښتو پريکولو د پاره ور نزدې شوله چه ږيرې له ئې لاس ور وړ د خوان يقين وشه چه ما وژنې جوړ په تلوار پاڅيد توره ئې واخستله او ښځه عاجزه ئې مړه کړله + مړيې دمينې ور ددکړ دښځې ورونړو ته ئې وُويل چه زر راشئ ستاسو خور ئې بي گناه مړه کړله + هغو توري را واخستلې په تلوار راغلل او خوان ئې سرکړ دواړه عاجزان د مړيې په چُغلۍ سره مړه شول +

## حکايت دوه لسم

يو بادشاه ډير خوږب وه او وجود ئې بې‌شانه غټ وه هسې حد ته رسيدلی وه چه له هر کاره ژيلي وه + نو طبيبان ئې جمع کړل دپاره د دې چه خوګ

لنيا ستله ياني رِ چه دويمه دا دَه چه يو څيز نه ويني نو باور پرِ مه
کړه + چه دا يي وُويل نو بيا لاړه د وُني سر ته وختله او دئ ويل چه اي
سرئ څما په جوره کښ شلئيي شلئيي روپۍ تول دره مرغلري وي چه
څغه ستا او ستا د اولاد بس دي ولې نصيب دِ په کښ نه وه + دي په
ژړاشه دير ارمان ئي کاوه لاسونه ئي مروړل بائي وِ چه خير څغه خو لاړلي
مګر څغه دريمه خبره خو وُوايه + هغي وِ چه په دوهنو دواړو خبرو دِ کوم
عمل وکړ چه دريمه هم غواړي + ما در ته ويل چه په شوي کار پسي پښيماني
مه کړه + او چه يو څيز نه وي نو باور پرِ مه کړه + او چه ما ويل چه څما په
جوره کښ دوهره دريي مرغلري دِي نو تا پرِ باور وکړ + نه دوهره نه
پوهيږي چه زه د بڼرو سره هم په تول به د لسو روپو سره برابره
نه شم + او بيا دوهره ارمان او ژړا دِ وکړل چه نور پرِ نه کيږي + دا ئي
وُوين بيا لاړه والوتله او ښکاري پاتي شه +

## حکايت يُولسم

که څوک دير کوشش وکړي خو د چاپي خور له فساده به خلاص نه شي +
لکه يو سړي وه چه مړيي ئي خرڅاوه + يو ځوان وله راغي ويل ئي چه دا

څوک کوي لکه چه تا وکړل ٭ وي لا دا و
چرچنړي خان سره ويل چه هوښ
هر چا چه زړه ورتوب وکړ پښيمان
سلامت به پاتي شي اوس حيرانه يم چ
ئي فکر له خان سره وکړ نو ښکاري ته ؤ
وړ چه اې سړې يو څو خبري له ما نه
فايده ورسوي بياله ما سره هر څه چه
چرچنړي ته دا خبره واوريده يو ساعت
نه ٭ چرچنړي وِ چه ته خو پوهيږي چه
مريږي نو که زه دِ خوښه يم خو ما و
خوښيږي نو ما پريږده چه يوه خبره
وني په بيخ کښې وکړم او يوه د دې ؤ
ډيره ښه ده نو ئي پريښووله ٭ وِ چه ؤ
دَه چه څو چه ژوندی يې نو په شوي
زړه کښې وِ چه څه عجيبه خبره ئي وکړ

يل چه ښکاري راغي او دا ئي ونيوله ٭
يارانو رښتيا ويلي دي چه
به شي او هر څوک چه وويريده
به په څه به خلاصه شم ٭ يو ساعت
ب مخ را وګرزاوه او ور ته ئي
واوره اميد دي چه به تا ته
کوي هغه کوه ٭ چه ښکاري له
حيران شه بيائي ويل چه ووايه که
به ما باندِ نه څوک څريږي او نه
خوره او که د حکمت خبري دِ
ستا به لاس کښې وکړم او يوه د دې
ب په سر باندِ وکړم ٭ ښکاري وِ چه
وايه ٭ چرچنړي ويل چه يوه خو دا
کار پسې پښيماني مه کوه ٭ ښکاري په
٭ چرچنړه لاره د وني په بيخ کښې

# حکایت لسم

په یو ځاي کښ یوه چرچڼره په یو دام بانډ پېښه شوله + نو ورته يُ وَوِ چه څه سبب دي چه له خلقو جدا پروت يي + دام ویل چه په کوښه کښ امان او سلامت راته ښکاریږي + چرچڼري ویل چه په خاورو کښ ولي پروت يي + دام ویل چه عاجزي کوم ځکه چه لویُ خداي پاک له مناسبه ده+ چرچڼري ورته وُوِ چه دا ولي دومره خوار يي + دام ویل چه دا په ډیر عبادت کولو سرو + چرچڼري وِ چه دا پرې دِ ولي په غاړه کښ آچولي دي+ دام ویل چه دَ فقیرۍ جامه هم دا قدر بس دَه + چرچڼري وِ چه دا همسا څه کوي + دام ویل چه په دي تکیه کوم + چرچڼري وِ چه دا غنم درته څه له پراته دي + دام ویل چه دا ځما له خوراکَ تیري دِي که چرته وږي داهروي فقیر پېښ شي نو هغه له به يُ ورکړم+ چرچڼري وِ چه بل به داسي محتاج څوکَ وِي لکه چه زه یم ما له يُ راکړه + دام ویل چه شل ځلَ خو راشَه له نورو خلقو نه ته ښه يي چه يُ وخوري + چرچڼره ورغله خوچه مښوکه يُ داني له وروړله نو په غاړه پوري يُ دښي دام ونیست + چرچڼري وِ مه اي بدخويَ مکاره ټکَ چل بازَ داسي شه

څوک کړي لکه چه تا وکړل ٭دي لا دا ويل چه ښکارِي راغي او دا ئي وښوله٭
چرچنړي خان سره ويل چه هوښيارانو رښتيا ويلي دِي چه
هر چا چه زره ورنوب وکړ پښيمان به شي او هر څوک چه ووېريده
سلامت به پاتي شي اوس حيرانه يم چه په څه به خلاصه شم ٭يو ساعت
ئي فکر له خان سره وکړ نو ښکارِي ته ئي مخ را وګرزاوه او ور ته ئي
وِو چه اې سړيَ يو څو خبري له ما نه واوره امېد دي چه به تا ته
فايده ورسوِي بياله ما سره هر څه چه کوي هغه کوه ٭ چه ښکارِي له
چرچنړي نه دا خبره واورېده يو ساعت حيران شه بيا ئي ويل چه ووايه که
نه ٭ چرچنړي وِ چه نه خو پوهيږي چه په ما باندِ نه څوک ګړېږي او نه
مړيږي نو که زه دِ خوښه يم خو ما وخوره او که د حکمت خبري دِ
خوښيږي نو ما پرېږده چه يوه خبره ستا په لاس کښي وکړم او يوه د دې
وني په ښخ کښي وکړم او يوه د دې وني په سر باندِ وکړم ٭ ښکارِي وِ چه
ډيره ښه دَه نور ئي پرېښوده وِچه ووايه ٭ چرچنړي وِيل چه يوه خو دا
دَه چه څو چه ژوندی يې نو په شوِي کار پسي پښيماني مه کوه ٭ ښکارِي په
زړه کښي وِ چه څه عجيبه خبره ئي وکړه ٭ چرچنړه لاړه د وني په بيخ کښ

# حکایت لسم

په یو ځاي کښ یوه چړچڼړه په یو دام بانډ پیښه شوله + نو ورته یُ وَوِ
چه څه سبب دي چه له خلقو جدا پروت یي + دام ویل چه په گوښه کښ
امان او سلامت راته ښکاریږي + چړچڼړي ویل چه په خاورو کښ ولي
پروت یي + دام ویل چه عاجزي کوم ځکه چه لویُ خداي پاک له مناسبه
ده + چړچڼړي ورته وُوِ چه دا ولي دومره خوار یي + دام ویل چه دا
په ډیر عبادت کولو سره + چړچڼړي وِ چه دا پړي دِ ولي په غاړه کښ
آچولي دي + دام ویل چه دَ فقیرۍ جامه هم دا قدر بس دَه + چړچڼړي وِ
چه دا ډمسا څه کوي + دام ویل چه په دي تکیه کوم + چړچڼړي وِ چه
دا غنم درته څه له پرانه دي + دام ویل چه دا ځما له خوراکَ تیري دِي که
چرته وږي راه‌روي فقیر پیښ ښي نو هغه له به یُ ورکړم + چړچڼړي وِ
چه بل به داسي محتاج څوک وِي لکه چه زه یم ما له یُ راکړه + دام ویل
چه ښل ځلَ خو راشه له نورو خلقو نه ته ښَه یي چه یُ وخوري +
چړچڼړه ورغله څو چه منښوکه یُ راني له ورورله نو په غاړه پوري یُ دښتِي
دام ونښت + چړچڼړي وِ چه اي بدخویَ مکاره ټګَ چل‌بازَ داسي هم

څوک کړي لکه چه تا وکړل ؛ دي لا دا ويل چه ښکاري راغي او دا ئي وښوله ؛ چرچنړي خان سره ويل چه هوښيارانو رښتيا ويلي دي چه هر چا چه زړه ورتوب وکړ پښيمان به شي او هر څوک چه ووېريده سلامت به پاتي شي اوس حيرانه يم چه په څه به خلاصه شم ؛ يو ساعت ئي فکر له خان سره وکړ نو ښکاري ته ئي مخ را وګرزاوه او ور ته ئي ووې چه اې سړيه يو څو خبري له ما نه واوره اميد دي چه به تا ته فايده ورسوي بيا له ما سره هر څه چه کوي هغه کوه ؛ چه ښکاري له چرچنړي نه دا خبره واوريده يو ساعت حيران شه بيا ئي ويل چه ووايه که نه ؛ چرچنړي ووې چه ته خو پوهيږي چه په ما باندي نه څوک ګړېږي او نه مړيږي نو که زه دي خوښه يم خو ما وخوره او که د حکمت خبري دي خوښيږي نو ما پريږده چه يوه خبره ستا په لاس کښي وکړم او يوه د دي وني په ښاخ کښي وکړم او يوه د دي وني په سر باندي وکړم ؛ ښکاري ووې چه ډيره ښه ده نو ئي پرېښوده ووې چه ووايه ؛ چرچنړي ويل چه يوه خو دا ده چه څو چه ژوندي يي نو په شوي کار پسي پښيماني مه کوه ؛ ښکاري په زړه کښي ووې چه څه عجيبه خبره ئي وکړه ؛ چرچنړه لاړه د وني په ښاخ کښي

# حکایت لسم

په یو ځاي کښ یوه چرچڼره په یو دام باندِ پیښه شوله + نو ورته ئې وَوِ
چه څه سبب دي چه له خلقو جدا پروت یي + دام ویل چه په گوښه کښ
امان او سلامت راته ښکاریږي + چرچڼرِي ویل چه په خاورو کښ ولي
پروت یي + دام ویل چه عاجزي کوم ځکه چه لوئيْ خداي پاک له مناسبه
ده + چرچڼرِي ورته وَوِ چه دا ولي دومره خوار یي + دام ویل چه دا
په ډیر عبادت کولو سره + چرچڼرِي وِ چه دا پړي دِ ولي په غاړه کښ
اچولي دي + دام ویل چه دَ فقیرئ جامه هم دا قدر بس دَه + چرچڼرِي وِ
دا غنم درته څه له پرانه دي + دام ویل چه دا ځما له خوراکَ تیري دي که
چه دا همسا څه کوي + دام ویل چه په دي تکیه کوم + چرچڼرِي وِ چه
چرته وبیي راه‌روي فقیر پیښ شي نو هغه له به ئې ورکرم + چرچڼرِي وِ
چه بل به داسي محتاج څوک وِي لکه چه زه یم ما له ئې راکره + دام ویل
چه شل ځلَ خو راشَه له نورو خلقو نه ته ښَه یي چه ئې وخوري +
چرچڼره ورغله خوچه مښوکه ئې داني له وروړله نو په غاړه پوري ئې دستي
دام ونښت + چرچڼرِي وِ چه اي بدخويَ مکاره ټګَ چلبازَ داسي هم

وه هغه له وړغلل چه حال خپل ورته دواړو و وایه نو هغه حاکم هغه د
دري ډوډو خاوند ته وویل چه ځوان داخوان تا له په خوښه دري روپۍ
درکوي نو ته ئې ولي نه آخلي + هغه وویل چه صاحبَ زه په دي راضِي نه
یم زه خو خپل حق غواړم + هغه حاکم ورته وُوِ چه ته خپل حق غواړي
نو ستا حق یوه روپۍ کیږي او دري بل اووه روپۍ + سړي فریاد ونیولاوه
او وئې ویل چه صاحبَ څنګه څما یوه روپۍ کیږي زه په دري هم نه
راضِي کیږم او ته لا له یوه راکوي + حاکم ورته وُوِ چه تاسو دري تنَ وئِ
او ډوډي اته وي او هره یوه ډوډۍ چه دري ځایَ شي نو
څلیریشت حصّي تِ جوړیږي او تاسو چه برابر خوړلي وِي نو اته اته حصّي
دَ سړي په سر راځي + نو ستا دَ دري ډوډوله حصي شوي اته تا
وخوړلي او یوه پاتي شوه او دده دَ پنځهٔ ډوډو پنځلس حصي شوي اته
ده وخوړلي او اووه پاتي شولي + نو چه دي سړي اته حصّي خوړلي وِي نو
ستا په کښ یوه حصه لاړه او دده اووه لاړلي نو ستا یوه روپۍ رسیږي او
دده اووه رسیږي نو ته پخپله هم فکر وکړه چه څنګه حساب جوړیږي +
نو هغه سړي وویل چه بي شکَ اوس پوه شوم او په خپل حق راضِي شوم

مړکوري شوله او دَ مړکوري سره لاړله +

چه مړ شيْ رجوع خپل اصل وته کاندِ　　　دي لازم چه سړي ځان خاوري کا ورانډ

# حکایت نهم

دسي وبلې کيږي چه په يوځاي کښ دوه تنَ سړيْ وُو چه سره يوځاي ناست وُو ډوډيْ يْي خوړله + مګر يو سړيِ څخه پنځه ډوډيْ وي او بل څخه درې وې + ناګهانه يو ځوان په لاري تيريده چه دَدوي خوا ته نژدي شه السّلام عليکم يْي وويل دوي وُوِ وعليکم السّلام ځوانَ راځه څموږ سره ډوډيْ وخوره + دغه جوړ ور سره کښيناست او ډوډيْ يْي ور سره وخوړله چه له ډوډيْ خوړلو نه وزګار شول نو دغه دَ لاري سړيْ دَ ډوډو خاوندانو ته اته روپيْ پريښودي او ورته يْي وُوِچه واخليْ دا ستاسو دَ ډوډيْ بدل دَيْ + چه دوي روپيْ واخستلي نو دواړه په جګړه شول دَ پنځوُ ډوډو خاوند وويل چه پنځه روپيْ زما شوي او دريْ ستا شوي ځکه چه زما پنځه ډوډيْ وي او ستا دري وي + او دَ دريْ ډوډو خاوند وُوِچه دا روپيْ نيمي ستا دِي او نيمي زما دي + چه جګړه يْيُ زياته شوله او يو دَ بل په ويل نه راضي کيده نو په دغه زمانه کښ يو عادل ايمان دار حاکم

زور خبره کوئِ خو له ما نه باد غالب دَي ځکه چه په ما باندِ راشي نو هر طرف ته چه ځي هم هغه طرف ته مِ زغلوي * بزرګ باد ته خپله مدّعی عرض کړله * باد ورته ووېل چه ځما به څه قوّت او طاقت وِي که څه دي خو غر دي ځکه چه په ځاي خپل باندِ ولاړ دَي او پښي ئې په خپل مقام باندِ محکمي لګولي دِي او ما غندِ که په زرګونو جمع شي هم له ځاي ئې نه شِي خوځولي * بزرګ غره له ور روان شه چه حال ئې ور ته ووايه هغه ورته په ځواب کښ ووېل چه انصاف دا دَي چه زور او غلبه او قوّت او دبدبه که څه وِي خو دَ مږو به وِي ځکه چه ځما زړه ئې زخمي او سوري سوري کړ مګر زه ور نه نه تښتېدلي شم او نه ئې له ځانَ بهر وکښلي شم * بزرګ ورغي يو موږکوري ئې و مونده ورته ئې واړه قصه تېره کړله * چه هغه واورېدله ورته ئې ووېل چه ځما هم دَ ډېري مُدي شوق دي چه ځرته واده مِ وکړلي لېکن ما له خپلَ قومَ جنئي پکار ده دغه جنئي به زه څه کړم * جنئي ووېل چه دا خو آسان کار دَي ځکه چه دا شيخ صاحب که اوس دعا وکړي نو زه به ستا په شان شم * بزرګ په هغه ځاي کښ دعا وکړله جنئي بيا

يو مريد را وغوښت او دغه جنيئ يې ورته وسپارله او ورته يې وويل
چه ددې پالنه او ټمانځنه به ښه شان سره کوه خود چه لويه شي پس
له هغه به يې نور مصلحت کوو ۔ بيا چه څو مده پس جنيئ لويه شوله
نو هغه بزرګ را وغوښتله او ورته يې وويل چه اي جنيئ ستا خو
ميړګ خپلوان نشته نو اوس اختيار ستا دي ووايه چه دچا سره ستا نکاح
وکړم ۔ جنيئ ورته ووېل چه هسې څښتن ما له وګوره چه په قوت او په
مرتبه کښ يې سيال چرته نه وي ۔ بزرګ ورته ووې چه داسي لوي او
زورآور خو راته څوک نه ښکارېږي مګر يو نمر که وي نو به وي ۔ جنيئ
ووېل چه ډېره ښه ده ۔ صباح وختي چه نمر را وخوت بزرګ ورته
ودريده او ورته يې ووېل چه اي نمره داجنيئ زورآور څښتن غواړي نو مونږ
زورآور په خپل فکر کښ ته مقرر کړې يې نو ددې خبرې به څه مصلحت
وې ۔ نمر ورته په جواب کښ ووې چه زه به تاسو ته له خپل ځانه زورآور
ښايت وښيم ۔ بزرګ ورته ووې چه څوک دي ۔ نمر ورته ووې چه وريځ ده
ځکه چه لکوتې وريځ راښکاره شي نو څما مخ پټ کانړ ۔ بزرګ وريځې
ته ودرانړ شه چه حال يې ورته ووايه نو هغې ورته ووېل چه که د

پیدا شِي ✤ شیخ ورته وېل چه ډېره ښه دَه خدای دِ ستا مطلب پوره کړي خو ځما هم دَ خدای دپاره تاته یو حاجت شته دي ✤ مسافر وېل چه صاحبَ څه حاجت دي ✤ شیخ وېل چه ته جوړ شي او کار دِ وُشي نو بیا په دي لار مه راځَه په بله لار لاړ شَه ✤

# حکایت اتم

وېلي شوِي دِي چه یو بزرګ په غاړه دَ یوي وِلي ناست وه او په اوبو دَ صبر ئې لاس له ګنده‌ګیرئِ دَ دنیا نه وینځلي وُو ✤ یو تپوخ په هوا په هغه ځای باندِ تیریده یو مرکوري ئې له پنجو نه خلاص شه او دَ وراندِ دَ بزرګ ولویده ✤ بزرګ په ډېره مینه سره په زړوکي کښ ونغښت اوخپل کور ته ئې وړ بیا ئې دَ ځان سره وُویل چه نه بایده چه دکور خلق په لیدلو ددي مرکوري خپه شِي ✤ نو په هغه ځای کښ دعا ئې وکړله چه دا مرکوري جنئِ شوي هم په هغه شان کار وشه لکه چه ددِه مطلب وه یعني په هسي شان ښائسته جنئِ ترِ جوړه شوه چه نمر د انځکو ئې اور دَ غیرت په درمند دَ میاشتي پوري کاوه او ثورو زلفو ئې لوګي له زړه د شپي توري نه اوچتاوه ✤ بزرګ په هغه ساعت

# حکایت اوم

دیو شیخ په خلوت خانه کښې یو مسافر میلمه پیښ شه ❊ نو چه وقت
د خوراک شه هغه شیخ کور ته لاړ شه او یو غلور دوډیٔ یٔ واوړلې دغه
مسافر ته یٔ کیښودلې ❊ بیا په تلوار لاړ شه چه وله پیټي راوړي چه شیخ
پیټي راوړه مسافر دوډیٔ خوړلي وي ❊ شیخ بیا په تلوار لاړ شه غلور
دوډیٔ یٔ نوري راوړلي ❊ چه دي را رسیده مسافر پیټي توله کوټلې
وه ❊ شیخ بیا پیټیٔ له لاړ شه چه راته هغه دوډیٔ خلاصه کړي وه ❊
حاصل دا دی چه لس ځلٔ شیخ کور ته لاړ شه او چه یو څیز به یٔ
راوړ بل به مسافر خلاص کړي وه ❊ بیا شیخ ورته ویل چه ځوانٔ
خبر دي چرته ځي ❊ مسافر ورته یو ځای یاد کړ ویل یٔ چه صاحبٔ
فلانې ځای ته ځم ❊ بیا شیخ ورته ویل چه څه مطلب دي هلته په څه
پس ځي ❊ هغه ویل چه اوریدلي م دي چه په هغه ځای کښې یو لوی
طبیب دي زه هغه د لیدو دپاره ځم ❊ شیخ ورته وویل چه څه ناجوړتیا
درته چه طبیب له ورځي ❊ مسافر وویل چه ځلي ته م ډیره سینه نه کیږي
نو وایم که ورشم نو هغه ماته څه دارو راکړي چه خوراک ته م مینه

لکه چه دَ روم د ملک بادشاه نوشیروان بادشاه ته قاصد لیږلي وه ✦
چه دلبار ته ورسید څه گوري چه یوه لویه ماڼۍِ دَه بادشاه په کښ
په تخت ناست دي او نور بادشاهان او امیران او وزیران ورته په کرسو
ناست دِي ✦ لیکن چه قاصد تماشه وکړله یو ځاي ورته په هغې ماڼۍِ کښ
کوږ ښکاره شه ✦ نو له یو سړِي نه يې پوښتنه وکړله چه دا ځاي ولي کوږ
دي ✦ هغه ورته وویل چه دا دَ یوي بوډۍِ کور وه په هغه وقت کښ
چه بادشاه دا ماڼۍِ جوړوله نو هغي بوډۍِ ته ئي وویل چه
دا کور په ما خرڅ کړه مگر دَ هغي رضا نه وَه او په زور سره
خود بادشاه دا کار نه کاوه ✦ نو په دغه سبب سره دا ځاي په دي
ماڼۍِ کښ کوږ پاتې شوي دي ✦ قاصد وُویل چه رښتیا خبره دا دَه
چه دا کوږوالي ډیر ښه دي له هغه سموالي نه چه په ظلم سره شوي وي
او حق دَ انصاف دا دي چه دا کار نه په ورښتې زمانه کښ چا ویلي دي
او نه عِز ورستو گمان کیږي چه به څوک له بادشاهانو نه وکړي ✦ بادشاه
چه دا خبري دَ قاصد واوریدلي ډیر خوشحال شه او انعام يې وله
ورکړو او په مدار او په عزّت يې رخصت کړ ✦

ويل چه وشوه اوس به پر دائي انسشلي شي ÷ چه پښو ته يُ نظر وکړ دواړه منګلي ئ ورته ښکاره شولي ÷ و ئ ويل چه اي غريب ستا له تعسيب دوسره خوک نه وُو چه ئ ستا نوکونه پريکړي وي ته خو په پښو شل بي دري نوکونه له سبب ÷ نو زرزر ئ نوکونه هم ورته وتراشل ÷ دې غريبي خود مينه کوله او ذ هغه عاجز ئ بيخ وکښه ÷ بادشا خبر شه چه شاهين الوتاي دي نو حکم ئ وکړ چه که چا راوست انعام به ورکړم ÷ چه خلقو لټاوه د بوډئ کره ئ بيا موند ÷ جوړ بادشاه له ئ يوت او حال ئ د بوډئ د ميني او د مدار ورته بيان کړ ÷ چه بادشاه شاهين ته وکتل ډير خپه شه ولي نور ئ هيڅ و نه ويل مګر حکم ئ وکړ چه دې بهر وباسئ او دنړوره وګرزوئ چه دا به ئ حال دي چه څوک به دغه چا چينيږي چه په قدر ئ نه پوهيږي ÷

ي يارانو واره واورئ دا بيان ... چه دوه ظلم مقرر دي په جهان
يا نادان آشنا په يار کړي ستم ... يا دښمن رسوي خلق ته ماتم

## حکايت شپږم

زورآور له ښائي چه په کمزوري باندې زور نه کړي اګرچه کار ئ خرابيږي ÷

څکه چه سړي له رنځ روغ ښي نو په يوځايِ ناسته هم وله ښه نه دَه
اوس پاڅېدل پکار دي چه بهر لاړ شو يو خوا بل خوا وگرزو *
استاذ پاڅيد هلک ورسره دي بهر روان شول * چه يو سړي
به وليد ورته به ئي ويل چه استاذَ په خير پاڅيدلي * بل به ويل چه
شکر دي چه روغ شوي چه څوک به مخي له ورتلل مبارک شَه مبارک
شَه به ئي ورته ويل او استاذ به خوشحاليده او هلک به پټ پټ
خندل * بيا ئي نه رنځ وه نه ئي بيمارِي وه خير خيريت وه *

# حکايت پنځم

دَ کم‌عقل سړي دوستي له دښمنئِ سره برابره وِي * لکه يو بادشاه
شاهين دَ ښکار دپاره ساتلي وه او ډير فهم به ئي ورباندِ کاوه * ناگهانه
يوه ورځ والوت او دَ يوي بوډيِ په کور کښ ولگيده * بوډيِ زر لاس ور
واچاوه شاهين ئي ونيوه چه ورته ئي وکتل نو منبوکه ئي ورته کږه ښکاره
شوله * نو بوډيِ وويل چه هئِ هئِ عاجز په دي منبوکه باندِ به ته څنگه
خوراک کوي * جوړ چاره ئي را واخستله پاسنئِ منبوکه څو ئي وونه
پري کړله * چه ئي ښکنته او پورته منبوکه يو شان برابره کړله نو وئي

دم پوه شوې نه وم خما فکر نه وه لیکن په کښې سخته قصه وه که چرې
له اول پوه شوې وې نو خواه مخواه څه علاج به ئې په آسانئ سره شوې وه
مګر اوس دِ هم خداې خیر کړي خو خبره ګرانه ده ÷ دَ هلکانو میندو دعا
کوله او ویل ئې چه استاذ خداې دِ روغ کړه ÷ استاذ ویل چه آمین تا سو
سره دِ خداې بنه شي ÷ دَ هلکانو میندي لاړلې او استاذ په کټ کښ پاتې
شه ÷ بیا چه څو ورځې تېرې شوې نو دَ هلکانو له خولې نه دا خبره مشهوره
شوه چه استاذ د دوې په ټکئ او په دروغو ویلو ناجوړ شوې دې ÷ نو
یو بل ورته ووِ چه کم بختو سرې به مړ شي اوخون به ئې ستاسو په غاړه
شي فکر وکړئ اوس ئې څه علاج پکار دې چه جوړ شي ÷ دَ هلکانو هم
په زړه کښ رحم پیدا شه هغه مشر ته ئې ووِ چه راشئ چه څه علاج
ئې وکړو ÷ هغه ورته ووِیل چه راځئ چه یو یو ورځو ولې مریو چه درځې
نو ورته دِ وائې چه استاذ اوس خو جوړ یې که خیر وِي داسي مرهلک به
ورته او استاذ ته به ئې ویل چه استاذ اوس خو جوړ یې که خیر وِي ÷ بیا
په وارو پسي ورستي هغه مشر راغې چه د ئې کتل نو ویل ئې چه استاذ
شکر دې اوس خو دِ رنګ جوړ دې لیکن لکوټې ګرزیدل تا له په کار دې

ورته وُوِ چه باري داسي وكړئ چه تاسي ټول زور زور په چغو چغو سره
سبق شروع كړئِ + خو چه دوي شور ونښلاوه او زوك ئي جوړ كړ نو
هغه مشر هلك ورته وويل چه بي انصافو ولي دومره شور كوئِ تاسو نه
پوهيږئِ چه په داسي شور كولو دَ استاذ سر خوكيږي + استاذ ويل چه رښتيا
وايي لاړ شئِ شور مه كوئِ ټول آزاد يئِ + هلكان په خوشحالئِ سره لاړل په
لارو او په كوڅو كښ به ئي مستي كوله + چه يو څو ورځي تيري شوي نو دغو
هلكانو ته ميندو وُويل چه بي عقلو دا مُده دَ علم زده كولو ده او تاسو
ئي عبث په خوشو تيروئِ + هغو وُوِ چه څمونږ څه تقصير دي چه استاذ
ناجوړ دي نو مونږ چا څخه سبق وُوايُو + ميندو ئي وويل چه خير صباح
به مونږ لاړي شُو چه حال ئي زده كړُو چه ستاسو رښتيا او دروغ
معلوم شي + چه صباح شه دَ هلكانو ميندي دَ استاذ پوښتني له رواني
شولي + چه ور كره ورغللي څه گوري چه استاذ پروت دي دوه دري برستني
پرِ دپاسَ پرتي دِي سر تر پښو په خولو كښ لُوند دي په واي واي سره ناري
او فريادونه كوي + دَ دوي وار خطا شه ټولو وويل چه استاذ خير دِ
وِي دا څه چل دي مونږ خو هډو خبر شوي نه يُو + استاذ ويل چه زه

استاذ ورته ویل چه ولي ته ړنده يي نه وینې چه دا څما څه حال دي دَ پردو
خلقو دا باندِ زړه سوي پیدا شه او ستا دومره کښته او بدنیتي ده چه په کور
کښ يي او څما دَ حال پوښتنه دِ چرې کړې نه دَه او نه دِ دا قدر راته ویلې دي
چه دا ولي ÷ هغي ورته ویل چه زه څه ووایم ماته خو جوړ ښکاريږي ÷
هغه وو چه اي دښمني ښځي په دي دِ لا هم خوا ښه نه دَه ÷ هغي وِ
چه ته وار وکړه زه به آئینه راوړم ته خپل مخ په کښ وګوره هیڅ نښته
وسواس څه له کوي ÷ استاذ ویل چه ځَه ته ورکه شَه ستا آئینه دِ ورکه شي
لکه چه ته يي داسي به ستا آئینه وِي مه يې راوړه نه يې ګورم خو زر شَه
کټ راته جوړ کړه چه پرِ پریوزم ÷ هغي لا په کښ څه فکر کاوه ده بیا قهر
ورته وکړ او ویل يې چه ډیري خبري رانه مه کوه خو کټ راته سنبال کړه ÷
هغي ورته کټ واچاوه بیچاوړه يې پرِ وغورځوله ÷ استاذ پرِ دَپاسَ پریوت
او هلکانو ته يې ویل چه دلته څمونږ کره سبق وایئ ÷ هلکان ناست
وُو سبق يې وایه لیکن حیران شول ټولو ویل چه دا څه وُو او څه وشُو
ډیر دومره وشه چه نور پرِ نه کیږي او له قیدَ مونږ خلاص نه
شولُو ÷ اوس بله حیله په کار دَه چه له بندَ خلاص شُو هغه مشر هلک

ځمونږ قبول دِي * ده وُوِ چه مصلحت دا دَي چه صبا له سبق له ورشو
نو هر يو به استاذ ته وايُو چه استاذَ خير دِ وِي رنګ دِ زيړ دي جوړ نه يي
له څه سبب دي بيا نورځه مه وايئِ * چه صبا شه هلکان به مدرسي له
تلل او هر يو به استاذ ته ويل چه استاذَ خير دِ وِي رنګ دِ زيړ دي *
استاذ به ورته ويل چه هيڅ نشته زه خوجک جوړ يم * ليکن په زړه کښ
به ئې لګوِيِ وسواس پيدا کيده * ورستي له ټولو نه هغه مشر هلک راغي
چه استاذ ته ئې کتاب وغوړاوه په تلوار سره ئې بيا پورته کړ * استاذ
ورته ويل چه هلکَ ولي دِ کتاب پورته کړ * هلک ورته ويل چه صاحبَ
هرڅوک خپل خپل مطلب کوِي او انصاف په هيڅا کښ نشته او نه زړه سوي
څوک لرِي ته داسي ناجوړ يي چه زه دِ خراب حال او زيړ رنګ ته وګورم نو
زړه مِ خوږ شِي ځما سبق دِ هيچرِي ونه شِي خو چه ته جوړ شي نو دغه ځما
سبق سبق دَي * استاذ اوچت پاڅيده او په ډير قهر سره کورته روان شه
ښځي ته ئې آواز وکړ ويل ئې چه راشه دروازه لري کړه * هغه په خوشحالئِ
راغله دروازه ئې لري کړله څه ګوري چه استاذ غمجن زهير ولاړ دي *
ښځي ورته ويل چه خير دِ وِي ولي داسي بيوقتَ له مدرسي نه راغلي *

دښېږي او که بل ځاي کښې سړي پرِ پوهیږي نو دا وسواس
نه پیدا کیږي چه څه به تږ کړ کړي + او بل داسي کار دي چه
خوږم نو دَ ژبي بيل خوند وي او د سترګو بيله مزه وي او دَ غوږونو
بل شان او دَ مغزو بل رنګ + داسي په هر ځاي کښې بيله
بيله فايده ده نو قيمت پرِ لږ لګيږي او کار ډير حاصليږي +
نو په دا سبب مې سر خوښيږي او بله غوښه نه راوړم + هغه وې
چه قسَم دَي چه ستا په شان شوم م تراوسَ نه دي ليدلي +

## حکايت څلورم

سړي له مناسب دي چه بي له دليلَ په تش ګمان سره دَچا په ويل
باندِ باور نه کړي اوکه کړي نو نقصان به يې دَځان ښي اوخندا به ور
پوري دَ جهان وي + لکه دَ ملکانو يو استاذ وه چه ډير بدخوي وه او
ملکان به ئي مدام وهل + نو ملکانو سره يو بل ته وويل چه ډير
تنګ شو راځئ چه څه علاج وکړو چه له دي بلا نه خلاص شو + او
په دوي کښ يو مشر وه شغه وُوِ چه که تاسو خما خبرِه منئ نو بيشکَ
علاج به يې وشي + ملکانو ورته وويل چه هر څه چه ته وايي هغه

# حکايت دريم

نقل دي چه يو دولتمند سړي وه ولې په هسي شان شوم وه چه له
ډيرې شومتيا نه به ئې غوښه نه خوړله او که چرې به ئې ډيره مينه ورته
وشوه نو له قصاب به ئې سلامت سر دَچيلي ياد کړوړي په خدمتګار
باندِ را وغوښت + نو په هغه سر به ئې دَ غوښو مينه ماته کړله +
حاصل دا چه ټول عمر ئې دغه ګذران وه + يوه ورځ ورته يو آشنا
وِوِچه څه سبب دي چه په اوړي ژمي ته بې له سرَ بله غوښه نه
خوري + ده وُوِچه دا م ډيره خوښه دَه څکه + هغه وُوِچه دا خبره نه منم
خو که څه فايده په کښِ وِي هغه راته وُوايه ولې رښتيا وايه ستا دِ
قَسَم وِي چه دروغ وُ نه وايي + ده وِچه دا حال خو ما هيچا ته نه وايه
ليکن چه تا سوګند راکړِ نو اوس به ئې درته وُوايم خو ته ئې چا ته
مه وايه + هغه وُوِچه څه له به ئې وايم + ده وِچه رښتيا خبره دا ده
چه سر ډير ښه څيز دي + يو خو دا چه نرخ ئې معلوم وِي نوکر په کښِ هيڅ نه
شي پټولي + بل چه پخلي کوِي نو که نوره غوښه وِي خو دي تِرِ په غلا
خوري شِي او که سر پخوي نو تِرِ نه شِي خوړلې څکه چه که سترګه

ورباندِ شور جور کړِ هغوئ ووِ چه دومره احمقي او داسي ناداني او دا رنګ
بي‌وقوفي او دا شان بي‌باکي لکه تاچه وکړه هیڅوک به و نه کړي ÷ یو به
ویل چه قسم م دِ په خداي وي که به دا کار کافر هم چري وکړي ÷
بل به ویل چه سوګند خورمَ که دا معامله دَ دښمن له لاسَ چري
شوي وي ÷ بل به ویل چه خداي دِ وکه لیوني هم په دي خبره راضي شي ÷
هریو له خپلَ خپلَ قهره سره مناسب خبري وکړي ÷ چه دوي ستړي
شول او شور ئي لکوټي کمَ شه نو ایاز ورته وُ ویل چه اي امیرانو
اي سردارانو ستاسو عقل او پوهه او هوښیارتیا منم او په دي هم
قایل یم چه دا مرغلره لایقه دَ ماتولو نه وَه لیکن زه بت‌پرست نه وم
چه په کاڼي به م مینه کوله او دَ خاوند خبره به بر نه منله او که
رښتیا وایم خو مرغلره تاسو ماته کړله ځکه چه دَ بادشاه حکم له مرغلري
نه به زر ځلَ بهتر وه شغه تاسو رد کړ ÷ بادشاه له ایاز نه ډیر راضي
شه او وزیرانو ته به غضب شه لیکن ایاز په ډیرو زارو او عرضونو
له بادشاه نه ددوي امان وغوښت ÷ نو بادشاه دوي وبخښل او
ایاز له ئي ډیر عزت ورکړ ÷

بیا ئې یو ساعت سره نور مجلس کاوه ❊ بیا ئې هغه مرغلره یو بل امیر له
ورکړله او ویل ئې چه وایه چه څومره قیمت به دا مرغلره لري ❊ هغه وِ چه
بادشاهَ مهربانَ څما په فکر کښ خو دَ نیمي بادشاهئِ قیمت لري ❊ هغه وِ چه
ورته ووِ چه باري ماته ئې کړه ❊ هغه ووِ چه توبه قربان دِ شم داسي
مرغلره به هم څوک ماتوي هدو قیمت ئې مه حسابوه لیکن داسي بنائیست
او رنګ او صفائي به بیا چرته پیدا شي څما لاس وله کله ورځي چه دا
ماته کړم دا خو دِ خداي هول عمر د بادشاه په خزانه کښ لري ❊
بادشاه هغه له هم خلعت ورکړ او مرغلره ئې تر واخستله ❊ داسي هر چا
له چه به ئې ورکوله هغه به هم په دغه ترتیب سره څواب کاوه ❊
ناګهانه وار دَ اياز راغي چه ایاز له ئې مرغلره ورکړه نو ورته ئې ووِ چه
وایه تا نه ددي مرغلري قیمت څومره ښکاریږي ❊ هغه ووِ چه څما صاحبَ
دا معلوم څیز دي چه ډیر لوي قیمت لري نو زه به څه ووایم ❊ بیا بادشاه
ورته ووِ چه ماته ئې کړه ❊ هغه دستي دوه کاڼي راواخستل په
یو ئې مرغلره کیښوه او بل ئې پر را وګرزاوه هغه مرغلره ئې پوټي پوټي
ذري ذري اوره کړه ❊ چه دا کار ئې وکړ هلته امیرانو او وزیرانو

وختـه نوري لټولې زري چيرري وي + له قهر ئي هغه گز لټوکره هم دغوررولې
عالم ته ئي ووِ چه خداي دِ خوار کړه زه دِ به دي زرو چيررو له کارَ
و ويستلم دومره نه شرميږي چه په داسي ټکيِ سره دِ زه وغلولم + عالم
ويل چه ته ډيره ښه خبره کوي ليکن دا کار ستا په حق کښ لوي
نصيحت شه چه ته پوه شي چه د دنيا کارونه ټول دَ لباس او دَ ټګيِ دي
او چه څوک په دنيا مينه کوي هم داسي به غلبيږي +

# حکايت دويم

يوه ورځ محمودِ غزنوي بادشاه دربار ته راووت يوه مرغلره ئي په
لاس کښ وه + يو وزير له ئي ورکره ورته ئي ووِ چه دا مرغلره ستا
په فکر کښ دَ څومره قيمت لايقه دَه + هغه ووِ چه صاحبَ خما خو
يقين دي چه که په کرورونو روپئِ وي هم دَ دي مرغلري قيمت به ترِ زيات
وِي + بادشاه ورته حکم وکړ چه باري ماته ئي کره + وزير ووِ چه
دَ بادشاه له خزاني نه يوه پيسه کميږي نو خما زړه ورسره کړوږ کيږي
بيا داسي مرغلره به څه رنګ ماتومَ + بادشاه ووِ شاباش ته ډير
نيک‌خواه سړي يي نو ښــه خلعت ئي وله ورکړ او مرغلره ئي ترِ واخستله +

# کتاب

# گنج پښتو

## حکایت اول

په يو ځای کښ يو عالم وه چه ډيرې زړې زړې چيړې ئې ټولې کړې وې او په پکړئ خپلې کښ ئې نغښتلې وې ظاهر خلقو ته غټه پکړئ ښکاريدله او په کښ ئې له زړو چيړو نه بل څه نه وُو + يو وار په وقت د لوې سحر کښ لا تياره وَه چه مدرسې ته روان شه دپاره د دې چه له خلقو نه څه حاصل کا + ناګهانه په لار کښ يو غل ولاړ وه عالم ته ئې لاس ور واچاوه پکړئ ئې تر ونښتوله + چه غل څه قدر لاړ شه نو عالم ورته آواز وکړ ويل ئې چه ځوانَ دغه پکړئ ولټوه که پس له لټولو ئې وړې نو بې‌شک ئې وړه ما در بخښلې دَه + غل په وړاندِ زغليده ليکن هغه پکړئ ئې وسپړودله که څه ګوري يو ګز کپړه په کښ مبتلې شان

کتاب

# گنج پښتو

تصنیف دَ مولوي احمد

ساکن دَ تنګي تپه دَ هشتنګر